# شخصیات

صاحبزادہ حمید اللہ





قلات پبلشرز رستم جی لین جناح روڈ، کوئٹہ

# پښتانه شخصیات

## په علمي، ادبي او سیاسي ډګر کې

یعنې

د صاحبزاده حمید الله

د پښین

د پښتنو مقالاتو لمړۍ مجموعه ـ

۱۴۰۳ھ ـــــ ۱۹۸۳ء

قلات پبلشرز ـ رستم جي لین ـ جناح روډ کوټه

لمړئ چاپ ................ اشاعت اول ۱۹۶۸ء

دچاپ شمیر ........................ ۱۰۰۰

بیه ۶۰ روپۍ

دچاپ ځائ ................ قلات پریس

رستم جی لین ، جناح روډ ، کوئټه

# تړون

دَ ابوالکلام آزاد مرحوم په نامه پورې دَ چا
دَ قلم دَ سحرناکۍ او علمي حيرت آفرينۍ څه چه
زهٔ ډير متأثر يم -

# لار

# مقدمه

---

د مضمون (ESSAY) او مقالې (ARTICLE) ترمیان تو پیر یو نحو دلنږوالی او اوږدوالی دی - بل د مباحث د تنوع (VRIETY) او قوت استدلال (POWER OF REASONING) او طرز استدلال د حیثه هم مقاله ته پر مضمون باندې ترجیح حاصله ده - هسې په خپل عام تعریف کې مضمون مقاله هم په خپله لمن کې رانغاړي - څرګنده ده چه "ایسې" (ESSAY) د کوشش او وسې کولو په معنی کې راځي - او هم دا د (ESSAY) وجه تسمیه سوه - ولې چه په مضمون لیکلو کې لیکونکی ډیر وس کوي - لمړی څوک چه مضمون یې "ایسې" بللی او لیکلی دی - فرانس بېکن (BACON) دی - د ده کښلي کښلي نثر پارې چه د (ESSAYS) په نامه سره لمړی وار په ۱۵۹۷ع کې چاپ سوې - او بیا وروسته په ۱۶۱۲ع او ۱۶۲۵ع کې هم چاپ سوې - دا په ظاهره بڼه او سر سري توګه ډیوه نیمې او دوو ورو مختصرې غوندې نثرې ټوټې (FRAGMENTS) دي چه د بیان ساده ګي او د اسلوب یکسانیت یې لوی

خاصیت دی۔ دَ بیکن دَ دے مجموعے ټولې نثر پارے چه ۵۸ دی۔ دَ ذاتی اخلاقو او سیاسی مسائلو مباحث په لمن کی لری۔ هات۔ دَ دهٔ مضمون (OF GARDENS) دَ دهٔ دَ فطرت او مناظر قدرت سره علاقه او دلچسپی څرګندوی۔ دَ بیکن دا مضمونونه ترجواب مضمون خو پر مغزه او بنه دی۔ خو دَ مقالے اوصاف په ډیره کرانه پکی موندل کیږی۔

تر بیکن وروسته دَ دهٔ تقلید نورو انګریزی نثر لیکونکو هم وکړو او مضمون نویسی یا مقاله نګاری یو جلا فن وګرځیدو۔ په انګریزی کی رابرټ یولیس۔ ستیونسن بنه معیاری مضامین ARTICLES لیکلی دی۔ کرار کرار دَ مضمون او مقالے په لمن کی هر راز علمی۔ ادبی۔ تنقیدی۔ سیاسی۔ تاریخی، اخلاقی۔ مزاحیه او طنزیه مضامین راونغښتل سول۔ او دا رنګه په سوو مضامین ولیکل سول۔ جارج آرډیل ۱۸۸۲ع تا ۱۹۴۹ع جوزف ایډیسن ۱۶۷۲ع تا ۱۷۱۹ع چارلس لیمب۔ ایلډس هکسلے او نورو بے شمیره مضامین او مقالات لیکلی دی۔

په ختیځ (ORIENT) کی دَ نثر و نظم ماسیوا دَ مضمون نویسئ (ESSAY WRITING) باقاعده روایت (TRADITION) نه وُو۔ اګرچه دَ "مقالے" لفظ په ختیځو تحریراتو (WRITINGS) کی ډیر موندل کیږی۔ لکه دَ ارسطو او دَ اقلیدس مقالے۔ او لکه دَ ابو علی سینا دَ "القانون" کتاب مقالے چه دَ مباحثو او مفاهیمو (DESCRIPTIONS) دپاره استعمال سوی دی۔ خو په معروفه اصلاحی معنیٰ کی "مقاله" په عربی ادب کی نه وه۔ وروسته بیا په شلمه عیسوی پیړۍ کی مصری او عراقی او شامی صحافیانو

اوليکواو ډيرے اخبارى مقالے اوليکلے شوى وليکلے - د عربى مقالہ نگارئ تا داو (FOUNDATION) په صحيح معنى کے ستر مشرقى نابغہ (GENIUS) سيد جمال الدين افغانى مرحوم دے ۱۸۹۷ء دخپل هفتيځ اخبار "العروة الوثقى" په ۱۸ گڼوکے ايښے وُو - بيا د ده شاگرد محمد عبده مصرى - او نورو لکه محمد امين مصرى - حافظ ابراهيم وغيره مضامين ومقالے وليکلے - خو لبنانى نابغه جبران خليل جبران، عربى مقاله نگارى د معراج کمال ته ورسوُله -

په فارسى کے د نظامى عروضى سمرقندى "چهار مقالہ" خو موجوده وه - خو هلته بيا "مقاله" په خپله معروفه اصطلاحى معنى کے نه ده استعمال شوے - بلکه د "باب" يا "فصل" په معنى کے استعمال شوے ده - په نورے فارسى کے په نولسمه او شلمه عيسوى پيړئ کے مقاله نگارى او مضمون نوليسى پېل شوه - علامه قزوينى معيارى مقالے ليکلى دى - - د ده کتاب "بيست مقاله قزوينى" د ايم - اے فارسى، په نصاب کے شامل دے - د ده ماسيوا عباس "اقبال آشيانى" محمد تقى ملک الشعراء بهار - تقى زاده - او مرزا محمد خان قزوينى هم مقالے ليکلى دى -

په اردو کے د سرسيد احمد خان رسالے "تهذيب الاخلاق" او د عبد الحليم شرر رسالے "دلگداز" د سر عبد القادر اخبار "مخزن" د ابو الکلام آزاد اخبار "الهلال" کلکته، د محمد على جوهر اخبار "کامريډ" د نياز فتحپورى "نگار" رسالے - او د منشى سجاد حسين

"اودھ پنچ" اخبار و مقاله نویسۍ ته یې ډیره زیاته وده ورکړه - د علامه
شبلي - حالي - سلیمان ندوي - عبدالماجد دریابادي - عبدالسلام ندوي
ونورو مقالاتو او مضامینو د اردو ژبې مقاله نویسي د اوچتو مدارجو
ته ورسوله - د اعظم ګړه د دارالمصنفین د "معارف" د مقاله نګارۍ
خدمات به تل تر تله په اردو ژبه کې یادګار وي -

پښتو ته هم مقاله نویسي د جدید تعلیم تر اثر لاندې راغله
خو په پښتو کې یوازې د مولانا عبدالقادر مرحوم د مقالاتو دوې
مجموعې "د فکر بوټي" "د ذکر وړدي" - د دوست محمد کامل
مرحوم، او ډاکټر سید انوار الحق تحقیقي او تنقیدي خورې
ورې مقالې پرځپل ځای زیات ارزښت او دروند والی لري -
خو په کتابي بڼه کې لاندې دي سره راټولې شوي - نسي
"پښتو" پیښور، اولس کوټه، "ګلستان" کوټه "لار" پیښور"
په پښتو مقاله نګارۍ کې په ځپل ځپل رنګ کې زیاته برخه اخستې ده -
زموږ په دې سهیلي سیمه کې سلطان پاڼي مرحوم، سلطان محمد صابر
او فاروق شاه سمالزي پښتو مقاله نګارۍ او مضمون نویسي بنه
ډیره پرمخ بیولې ده - خو د دا ښاغلو مضامین و مقالې یوازې د
میاشتنیو یا هفتنیو په پاڼو کې موندل کیدای شي -

مضمون نویسي یا مقاله نګاري زما غوره شوګردی - اوس
هم له ما څه هغه کاپۍ خوندي پرته ده په کومه کې چه به ما په لسم
ټولګي (میټرک) کې د اردو جواب مضمونو نه د کرک په قلم خوښلې

لیکل او چې زما استاذ (نصیر عالمی صاحب) په کله (Good) کله (V. Good) او کله (V.V.Good) را کاوئ - زما وس دا وو چې ښه پر مغزه الفاظ ولیکم چې ښه معانی وښندی او زما پیرایهٔ بیان نه خو پیچیده وی او نه دومره سهله او آسانه چې داد بیت څخه خالی وی په بیانیه مضمون نویسۍ کې او په تیره بیا د مناظر فطرت او مظاهر قدرت په تصویرکشۍ او ترجمانۍ کې زما قلم ښه روان وو - د دې پس منظر او ادبي ذوق سره چې کوم وخت زه په ۱۹۵۶ع کې په ډگری کالج کوټه کې داخل سوم - نو زما د استاذ خلیل صدیقی صاحب په وسیلو او یارولو سره ما د پښتو خپل لمړی مضمون د کالج د کالیج میگزین "بولان" د پښتو برخې د پاره ولیکئ چې عنوان یې وو "د پښتو موجوده شاعران" دا تش د درو مخو لنډ نمونډی مضمون وو - خو دا زما په مضمون نویسۍ کې یو نقطهٔ آغاز او یو سنگ میل وگرزیدئ - دا یاد کاره لیکنه په دې مجموعه کې هم شامله ده

وروسته بیا د پښتو لیک سره سره ما د اردو لیک هم پیل کړ - او په ۱۹۵۷ع کې زما لمړی د اردو مضمون هم په کالج میگزین کې چاپ سو - بیا زما د پښتو لیکنو (مقالات) په "بولان میگزین" کوټه کې تر ۱۹۵۹ع پورې هر کال چاپیدو - په داسې وخت کې د کوټې د فضل احمد غازی په ادارت کې "گلستان" میاشتینزه را اووته - په دې کې هم زما څه شیان چاپ سو - او یو مضمون مې د لیک د دود تر عنوان لاندې پر پښتو رسم الخط باندې لیکلئ وو - چې په نغمه کې

دبنا غلی عبدالصمد خان شهید د نغه ادبی تحریک مدلل مخالفت کړی
وُو - چه د پښتو توری دی هم نغه رنګه لیکل کیږی څرنګه چه
نغه وئیل کیږی - ( PRONOUNCED ) په ۱۹۶۱ ع نومبر
کی چه د کوټی څخه د "اولس" میاشتیزه لمړۍ ګڼه را اووته او ماته یې
هم را ولیږله - نو ما هم خپلی لیکنی وروسته ور ولیږلی - نو دا وُو چه
په نومبر / دسمبر ۱۹۶۳ ع کی زما لمړی لیکنه ( ARTICLE ) "د کوټی
او د پښین ضلع "څخه سو. خوولی چه ما چوپه کړی دی منو د
جغرافیائی مضمون په دی هولو نه کی نشته - په ۱۹۵۹ ع
۱۹۶۰ ع او ۱۹۶۱ ع او بیا وروسته هم کله کله زما ادبی او مذهبی لیکنی
په اووه ورځنی "هیواد" کوټه کی چاپیدلی لکه "شب برات" "معراج"
نفلی روژی" او د پښتو سره سوی توری ( SYNNONYMS )
خو ما سیوا د دا استری مضمونه چه نیم کوټک را سره سته دا نور هول
ورک دی - ځکه په دی کتاب کی د "هیواد" د چاپ سوُ مضمونو
څخه یو هم نشته - د ۱۹۶۴ ع څخه تر ۱۹۷۹ ع پوری چه د اولس
لمړی او زرین دور ( GOLDEN AGE ) وُو - زما یو لړ مقالات خپاره
سو - دغه رنګه د ۱۹۷۲ ع په را دی خوا په میاشتیزه "پښتو"
پیښور کی زما یو شمیر مقالات چاپ سو - چه په دی کتاب کی
شامل زیاتره مقالات او مضمونونه هم د "اولس" او د "پښتو" دی -
یو څه نا چاپه مضمونونه هم یکی ګډ کړی دی - لکه "امیر خسروؒ" "ابوعلی
سینا" "امام مسلمؒ" "مثنوی مولانا رومؒ" او د غالب خطوط " چه د

زیاتره زما رېډیو یائي ویناوې RADIO TALKS دي . چه په اکثرو کې حک واضافه OMISSION AND ADDITION سوې ده .

زما د دې مقالاتو د لیکلو په وخت کې یقیناً زما داوس وُو . چه پر داسې سرتوري HEADING باندې لیک وکم . چه چا د مخه نه وي پر کړي یا زما تر ستر ګو نه وي تیر سوي . یا که چا لیک باندې کړې هم وي خو زه په هغه کې زیات نوي توب راوُلم یا زیات توب پر کوُم . کله کله ما د اخذو مآخذو ذکر کړي دئ او دا به داسې لکینځو کې چه هغه تحقیقي بڼه لري . لکه د "بلوچستان لرغوني او پیاوړي پښتانه لیکوال" "خطوط غالب" "مثنوي مولانا روم" "او ابو علي سینا" او دا کله کله مې د مأخذ SOURCE ذکر د مضمون په میان کې کړي دئ . په دې کتاب کې زیات شمیره د مقالاتو دئ . خو داسې مقالات نه دي . لکه "مقالات الهلال" "یا مقالات شبلي" "یا مقالات ماجد" "یا مقالات حالي" یا لکه د مولوي عبدالحق تنقیدات یا لکه د بنا غلي عبد القادر مرحوم د "فکرېونې" مقاله تهذیب وثقافت . بهرحال چونکه ما د جامعیت او د استدلال د وړانډې کولو کوشش هم کړي دئ . او ځای په ځای فلسفیانه طرز فکر او طرز بیان هم پکښې دي . نو په دې زه مقالات ورته وایم . ځني محض مضامین دي . لکه د پښتو موجوده شاعران "جنرل بخت خان" اولس رومانونه "او نور . ځني یا ځي د نورو ژبو څخه ترجمې دي لکه "کریم خان څوک وُو" سنټریمینټ لائبریري" زما د مقالو زیاته برخه ادبي ده . د هغه وروسته تاریخي مقالې

ډیرې دي - په اصل کې "ادبي وتنقیدي" یوشي دي - یواځې یو باریک
فرق پکښې دئ - او په "علمي" مقالوکې هم یو لړ ادبي مقالې شته - مذهبي
ساهغه په دې مجموعه کې کړ کړې دي چه علمي او ادبي رنګ
زیات لري - داسې ډیرې مقالې ما په دې کتاب کې نه کړې شاملې
چه زما په یو بل کتاب یا د پښتو د ودې د ټولنې پښېنځ له خوا
خپرو سوو کتابچوکې هم چاپ سوي وې - لکه د "پښتو شاعرۍ
خصوصیات" د پښېنځ نامتو عالم او شاعر عبد العلی اخوند زاده "
د پښتو شاعرۍ لمر ملا عبد السلام اشیزئی" او میاں عبد الحکیم نامتو
د مقالو ترتیب مې زماني یا الفبائي نه دئ ایښئ - لکه تر عنوانو
لاندې مې مقالې راغونډې کړې دي - لکه ادبي - تنقیدي - تاریخي
علمي - مذهبي او کړې وړې دا رنګه ټولې ۴۸ مقالې په دې کتاب
کې ما را جمع کړې دي - ما د مقالو د لیکلو په وخت کې دا خبره په ذهن
کې نیولې ده چه د لغو رنګ تخلیقي وي - لکه "لیک دود" تکیه کلام
په پښتو کې" او تقریباً ټول ادبي او تنقیدي مقالات په کومو مقالوکې
چه مې د پلټنې و دلټونه څه کار اخستئ دئ هغه دادي "پښتو
موسیقي - یوه تدریجي ارتقاء"

د بلوچستان لرغوني او پیاوړې پښتانه لیکوال "پخوانۍ
سکې" د اسلامي هیوادو آزادي "فورټ سنډیمن - " د سنګر غونډۍ
جنګ - " او نور خو په دې کتاب کې یواځې ۱۶ مقالې د شخصیاتو خپرېږي.
د دې مقالو او مضامینو قدر و قیمت ښوولی دئ - دا به

لوستونکي ادب طرف نقادان وواٸي ـ چه پاک کې د علم پروره شخصیت
زمرد حسین بهټه صاحب د زړه له کومې منڼه کوم چې
د دې کتاب د چاپولو کار پر غاړه واخیست ـ

صاحبزاده حمید الله پښتین

۲۱ لمړۍ خور ۱۴۰۲ھ

۱۸ جنوری ۱۹۸۲ء

# ستر خوشحال!

دَ خوشحال دَ نامه دَ اوریدو سره نه یوازې شخصیت - یو کنزارنځ شخصیت زمونږ راپېر زړه کیږي - بلے داچه یو تاریخ یو روایت او یو تحریک زمونږ په مخ کې وګرځي - دوی ډیر اوصاف لکه دَ دُوئ په ذات کې چه جمع دي - په ډیر ولږ وشخصیتو کې یو ځائ کیږي - او دا شخصیتونه زیاتره تاریخ ساز او عصد آفرین دي - لکه ابن قتیبه مروزی رح (م ۲۸۷ھ) امام رازی رح ۵۴۳ھ تر ۶۰۶ھ رومی رح ۶۰۴ھ تر ۶۷۲ھ جامی رح ۸۱۷ھ تر ۸۹۸ھ سیوطی رح (م ۹۱۱ھ) امیر خسرو دهلوی رح ۶۵۱ھ تر ۷۲۵ھ شاه ولی الله رح ۱۱۱۴ھ تر ۱۱۷۶ھ او نور -

سالها باشد که تا یک مرد حق پیدا شود
بو سعید رح اندر خراسان و اویس رض اندر قرن

لکه علامه اقبال چه وئیلی وُو ؎ تا ز بزم عشق یک دانائے راز آید بروں

عمرها در کعبه و بتخانه می نالد حیات
تا ز... غیب یک دانائے راز آید بروں

زمونږ دا بیا ورئ قهرمان او دَ دلاورئ کان حضرت خوشحال خان جنت مکان دَ هندوستان دَ مغولی باچا جهانګیر دواک په

زمانه کې د کال ۱۰۲۲ هـ د دوئي خور په میاشته (مئ /جون
۱۶۱۳ ع کې د پېښور څخه ۳۵ میله د لمرخاته وخواته
په سرائې اکوړه کې چه د لنډې سیند پر سهیلیځه غاړه پروت
دئ، د شهباز خان کره وزیږیدئ۔ ع

نعره زد عشق که خونین جگرے پیدا شد

د لیک او لوست په زمانه کې د غشي ولینده او سپرو توري
وکارته ځلمئ خوشحال اړ سو۔ د دیارلس کالو په عمر کې یې د پلار په
ملګرتیا د بهاکو خان یوسفزي د چپاو مقابله وکړه۔ د اتلسو کالو
په عمر کې یې واده وسو۔ د شلو کالو په عمر کې شاعر وو۔ په ۱۰۵۰ هـ
۴۱-۱۶۴۰ ء کې یې پلار د یوسفزو په شخړه کې مړ سو۔ خو ده د هغو
څه ژر بدل واخیست۔ د شاه جهان په فرمان خوشحال خان د پلار
پرځائې ملک وټاکل سو۔ د بلخ او بدخشان په مهماتو کې خوشحال
د میرا صالت خان په ماتحتئ کې د مغلو ډېره خدمات اوکړو۔ ۱۶۴۱ء
تر ۱۶۴۶ ع د شاه جهان د قندهار د مهم په سفر کې یې د هغه سره ولیږ۔
په ۱۶۶۹ ع کې اورنګ زیب عالمګیر د غلې او نورو اجناسو
راهدارئ معاف کړه۔ سرکاري اوهم د خوشحال آمدن کم سو۔
وروسته د کابل د صوبه دار سید میر خوافي په حکم د پېښور حاکم
خوشحال خان د خپلو دوو اکاګانو فیروز خان او بهادر خان په
پاړولو ولمسون اونیو۔ او پنځ سیرئ بیړئ یې ولېښوته ورواچولې
بیائې په ۱۰۷۴ هـ م ۱۶۶۴ ع کې د ډهلي ته واستاوئ۔

اسپ تازی شده مجروح بزیر پالان
طوق زرین ہمہ در گردن خرمی بینم

دَ دُه ورور - تربور او زوئے دده دَ خلاصیت ناکامه کوشش وکئی - ہ

شکست و فتح نصیبوں سے ہے ولے اے میر
مقابلہ تو دل ناتواں نے خوب کیا

اورنگ زیب دَ خوشحال خان دَ اولاد دَ یر غمال کولو هم حکم کړئ وُو - خو هغه غیرتی پښتنو دَ ننګے ضلع مردان دسکیری او بیاسنګاؤ نومی ځائے ته ورسول - خوشحال خان په دهلی رنتهبور کې دوه نیم کاله بندی وساتل شو - او دَ دُولسی پیړئ دغزنوی شاعر مسعود سعد سلمان غوندې پښتو حبسیات په وجود کې راوړو - خوشحال چیغې کړے - ہ

قسمت ئے څه چارې را وکړے!
ندارہ دَ درست جهان شوم

نه ګناه نه مې تقصیر وُو!
دَ بادشاه په بند زندان شوم

عالمګیر چه په تخت کښیناست
له قرانه په قران شوم

دَ بگرامه پښنے ستړے
هندوستان لره روان شوم
په دهلی په زنتهبور کی
درے شلور کاله حیران شوم

په ۱۰۷۹ھ م ۱۶۶۸ع کی دَ کابل دَ صوبدار مهابت خان په سفارش اورنګ زیب خوشحال خوشی کړ۔ چه ښجل نفیواد ته راستون سو نوئے تأثرات داؤو۔ ے

پس له بنده دَے دا عزم
دَ خوشحال دَ خاطر جزم
یا نیولے مخ مکے ته
یا مغلو سره رزم
یا به کوږ دَ غره نیولے
لونږ روژه دَ لوستو عزم

اوس خوشحال مغلو ته دَ ښمنه وک وُو۔ خو دَ عملی کارروائے څه ئے لا دوه کوله دَ اورنګ زیب دَ ماما میرجمله زوئے محمد امین خان دَ کابل صوبدار و تهاکل سو۔ سرکاری سپاهیانو دَ یوے صافئے نجلئے بے عزتی وکړه۔ صافیانو سپایان مړه کړو۔ او وتښتیدل۔ محمد امین خوشحال ته دَ خپلو بنو بیغور ورکړ۔ دَے ورسره ملګرے سو۔ دَ مهمند وشر مستجاب هم ورسره وُو۔ پس له ژمی محمد آمین خان دَ یولوئے مغل لښکر سره دَ کابل په خوا ور روان سو۔ پر لنډی خانه باندے

دَپیاوړی اودلاوراېمل خان مهمند ترکمان لاندی دَ مهمند دَ شنوارو اوافریدو یولوئ لښکر ومخ ته ورډیدئ. زورور جنګ وسو۔ مغولی لښکر ماته وخوړه۔ محمد امین دَ یو شو پښتنو جعدارانو سره پېښور ته راغئ۔ نور لښکر چه خوشحال خان هم ورسره وُو۔ د تهتوئ پرلار راستون سو۔ هلته پښتنو بلله کلکه حمله پرشاهی فوج وکړه۔ دَ سرومال ډیرتاوان یئ وروړساوئ۔ دَ محمد امین خان ښځه، زوئ مرزا عبدالله او اخښئ مرزا سُلطان کربلائی وُورژل سول۔ لُور خور او موریئ دَ پښتنو په بند ولاړی چه بیائ په پیسو را ایله کړې۔ دَ خیبر دا ستره تاریخی حادثه پر ۲ محرم ۱۰۸۳ھ م ۳۰ اپریل ۱۶۷۲ء پیښه سوه۔

دَ خوشحال خان زوئ بهرام خان دَ مشرئ دَ حصول په هڅه دَ پلار مخالف او دَ مغولو پخواسو۔ خوپلار په ډیرو جنګو کی ماتی ورکړې۔ دَ دې ځایه څه دَ خوشحال او دَ مغولو ترمیان عملی عداوت شروع کیږی۔ په دغه شپوکی ده دا اوچته قصیده لیکلې ده۔

پرورده که دَ مغلو په نمک یم
دَ ورتک دلاسه ډیرله غریوه ډک یم
اوپه آخرکی دَ افغان په ننګ می اوترله توره
ننګیالئ دَ زمانی خوشحال خټک یم

خوشحال ومغولو سره وجنګو ته ملا وتړله۔ ده ډونبارکلاوکښ

غیرت ایمل د مغولو و لښکر ته ماته ورکړه ـ شجاعت خان مړ کړل سُو ـ
او مهاراجه جودهپور جسونت سنګه راټهور وتښتیدئ ـ دا دکړې جنګ
وُو ـ وروسته ننګیالی دریاخان مهمند پر کوهاټ برید وکړ ـ خو
ماته یې وخوړله ـ او ورور تاتار خان یې مړ سو ـ بیا لاندې اورنګ زیب
عالمګیر په خپله د پیولوئ فوج او توپخانې نه په اوُوم جولائی
۶ ـ ۱۱ ع کی حسن ابدال ته راغئ ـ خوشحال قصیده اولیکله ـ

اورنګ زیب باچا زړه ورک په لاهور راغی
ګوره کاندی به څوک وران څوک به ودان شی

په جهان د ننګیالی دی دا دوه کاره
یا به اوخوری ککرئ یا به کامران شی

د ایمل وو دریا په سلاح خوشحال خان سوات له ولاړ
خو د مغلو په خلاف د هغو په راپارولو کی نه سو بریالئ ـ
خو نیه دئ د سوات څه راشوه سو ـ نو یوسفزو لښکر
راوکئ او په مغل چیری کښت مغزا وُوهلی، اورنګ زیب په سیاست
او په چل ول او پیسو د پښتنو زور کم کړ ـ او بیرته ولاړئ ـ په
۱۶۷۵ ع کی د باچا د تګ وروسته د بنګښو سردار شیر محمد خان
د کوهاټ څه ۲۴ میله لری د ګبنت پر ځائ و خوشحال خان
ماته ورکړه ـ خان عالی شان او مشرزوئ یې اشرف خان دواړه
ټپیان سول ـ د خان تاثرات دا وُو ـ

دَ بنګښو په توره مَاتې نه یم باور کړه
دَ ګښتې په جنګ می مَاتې اسمانی وه

بل ځائې وائې - ه

مَا په ننګ دَ پښتانه ځوانان قربان کړه
بیا می غوره غوره جمع بنه ځوانان کړه

چه نو ښهر می واهه کوهاټ می پریښود
لاهاله ذو مَادا کړه وودَنا دان کړه

تردې جنګ وروسته اورنګ زیب خپل مشر زوی محمد اعظم دَ پښتنو پر مهم وګمارې هغه چه اټک ته را ورسیدې نو یې خوشحال خان ته دَ دوستې پیغام ورولیږې - خان یو څو دَ مغلو دَ تیرو اِحسانانو او یو څه دَ خپلو دَ بې وفائې له کبله ورسره وکتل - شاهزاده امیر خان - مهاراجه جسونت سنګه او راجه رام سنګه وخان ته انعامونه ورکړو - خو خان کابل ته دَ هغو سره نه ولاړې - په ۱۰۹۱ھ م ۱۶۸۰ع کې خان عالی شان دَ مغلو طرفدارانو بنګښو ته دَ کوهاټ څه ۹ میله لرې دَ جوږه پر مقام کلکه مات ورکړه - ډیر بنګښ قتل سول - ختټکو مخه وکړه - خان نارې کړې -

څو وا نخلې له غلیمه انتقام
مرد نه خوب کا نه خوراک کا نه آرام

او دا چه -

دَ کښت غصّه مې وُوته له د له
خدائے چه راکړه په دوه دَ فتحې کا)

خو دَ خوشحال صاحب کمال دَ ړوند استرګې شپې دَ خوشحالۍ
نه وے - پښتانه مغولي سوے وُو - دَ مغولو تالي يې څټلے - خوشحال پرے
بيړ روکه هر څوغم جن وُو خو مغلو ته يې ترپايه سرنه کړے ټيټ - مړي
زوړ سوئ وُو - خو دَ ل ښکاريږي اوس هم نه خوږ دَ داسې نارے سپي
داسې دي -

مغلو ته چه نور م هغه لهسې مغل نسته

دَ توري دارے تير دي اوس ورپاتې يو قلم دي

پښتون په زور رونېسې په فريب په ټيټالونو
په مائے اثر لسته لا په ما دَ خدائے کرم دي

ايمل خان، دريا خان د واړه ښه په رنګ تير شول په ننګ کو -
د دواړ و په فراق کې زماتل آه و مات دي او دا چه - ے

خپل اولس مې مغولي سو
نا اميد له خاندانه سوم

دَ دے ما سيوا دَ ده نا خلف زوي بهرام خو دَ ده دَ ړوند په
آخرى د وُو کلوکې دَ ده په سر ليسې وُو - څو واره يې بريږ ونه پرا وکړو -
دَ خوشحال کسان يې هم وُوژل - بابا نارے کړے ے

شوم بهرام مې د ځان غم سو
زه هم غم د ده د ځان سوم
ناخلف مې مخالف سو
زه د ده په کار حیران سوم
دی لښکر راپسې بیا ځي
زه و ده ته ګریزان سوم

د ده د لاسه خان علیین مکان سره د دوو زامنو سکندر خان او صدر خان د افریدیو سیمو ته ولاړ ۔ هلته یې د توتکي وسهیل ته د ډېرې په غره کې پناه واخسته ۔ او په دا حال کې دا لوی شاعر سترلیکوال، غښتلی مبارز ۔ نرجنګیره ۔ پیاوړی ۔ تورزن د ننګ مجسمه، د پت غر ۔ د غیرت نمونه ۔ د ښوالی معلم ۔ وتلی عالم ۔ منلی فاضل ۔ د قام خواخوږی د پښتونوالی سمبل (symbol) د نرتوب علامت ۔ د شرافت کان او د انسانیت علمبردار د خپلو شړلی، او د پردیو ترټلی د جمعې په مبارکه ورځ د دویمې خور پراته ویشتمه نیټه او د شمسي میاشتې د حوت په لمړۍ نیټه په ۱۱۰۰ ھ کې مطابق ۲۰ فروري ۱۶۸۹ په حق ورسیدی ۔

اِنّا لِلّٰهِ وَ اِنّا اِلَیْهِ رَاجِعُوْنَ ط

چه ژوندی وم تاسې وولیشتم په کانو
اوس مې خله ښکلوی د قبر کاڼي

عجب رسمے بنا کردند بخاک و خون غلطیدن
خدا رحمت کند این عاشقان پاک طینت را

بیا به خود صدر خان و سکندر خان دَ خان مړی دی او هلته یې
په ایسوړی نومے کلی کښې په خوا کے پر لهغه لوړه غونډۍ باندې پټ کړی
دَ کوم په لړکی چه دُه پخپله دا سی وصیت کړی وُو۔

کہوں تم سے اے ہم نشین دل کی بات
وہ مدفن ہے خوشحال خان کو پسند
اڑا کر نہ لائے جہاں باد کوہ
مغل شہسواروں کی خاک سمند
آسمان تیری لحد پر شبنم افشانی کرے ۵
سبزۂ نورستہ اس گھر کی نگہبانی کرے

تصانیف :-

سره دَ دوئی جنګ وجدل خان د رزم سره دَ بزم خاوندهم
دی ۔ او عجبه داده چه په یوهٔ قول سره دَ دهٔ ټول دَ نثر و نظم
تصنیفات وسل (۱۰۰) ته رسیږی ۔ خو محتاطه اندازه داده چه دَ ده
تصانیف دوه درزنه ته رسیږی ۔ موجوده چاپ او ناچاپ تصانیف یې
دَ دُولس دی ۔ چه په لنډه توګه یې حال دا سې دی۔

(۱) هدایه :- دَ حنفی فقهې دَ نامتو کتاب او دَ برهان الدین
المرغینانی دَ لیکلی هدایې پښتو ترجمه ده ۔ دلوی
تقطیع یونیم زر او دَ کشنی نصابی تقطیع تقریباً درے زره مخه کتاب
دی۔

(۲) آئینه :- دَ فقهې کتاب دی چه دَ عربی څخه ترجمه
شوی دی ۔

(۳) فضل نامه :- دا هم دینی کتاب دی او هم د داروګانو کتاب دی۔ بحرئ هغه دئ کوم چه د نامتو

فقهی کتاب "رشید البیان" او د عبد السّلام اشیزی د کتاب "طلب مذهب" بحر دئ۔ یعنی هره مصرع یئ اته سیلابه ده۔ دا کتاب د خدائ بخنلی عبد الخالق خلیق په اداره اشاعت سرحد پېښور کی په ۱۹۵۲ء کی دېر ښه چاپ سوئ دئ۔ سریزه یئ میر رحمان غازی او مقدمه یئ محمد عبد الشکور لیکلے ده۔ چه هغه یئ مخطوطه موندلے وه۔ د دے کتاب د اختتامی شعر څخه د کتاب د تصنیف کال هم راوزی۔

راسه کال چه د عفط دئ
۱۰۸۹ھ
یو کتاب می په نمط دئ

د دے چاپ نسخے مخونه ۲۵۰ او د اشعارو شمیر یئ تقریباً ۳۷۵۵ دئ۔ په دے کتاب کی عالم او طبیب خوشحال پر دا عقائدو او عباداتو او احکامو باندی شعرونه وئیلی دی۔ عقائد، ا‌‌ناسونه، اخلاص وریا۔ طهارت، لمونځ، د جماعت ثواب او د تارک الجماعت عذاب۔ زکوٰة روژه، غزا۔ کفارتونه، نکاح۔ طلاق، وجوب کسب مختلف حقوق جزیه وغنیمت۔ (د حج بیان یئ نه دئ کړئ۔ په داروګانو کی دا شان بیان سوی دی۔ د سترګو دارو۔ ژړی۔ د تونخی دارو۔ د قوت باه دارو۔ د بواسیر دارو۔ جلاب۔ د بادلقوه دارو۔ د سنګ مثانه دارو۔ د دردسر علاج۔ د وینو کښلو فائده۔

(۴) بازنامه :- پہ دے کتاب کې چه یوه مثنوي ده
دَ بازانو دَ قسمو، مرضو، علاجو او دَ ښکار
بیان دې. دا کتاب دَ پښتو په عام او روایتي بحر کې دې. چه دَ صفحه
هر شعر ځلیر ویشت سیلابه او مصرع یې دوولس سیلابه وي. دا کتاب
دَ کابل پښتو ټولنې په شنه سیاهۍ خېر بنه چاپ کړې دې. او چه
په صفحه کې دَ افغانستان دَ پخواني واکدار محمد ظاهرشاه دَ خوا
وړکړې دښکارۍ بازدوے خاکے هم سته. دا دَ کابل پښتو ټولنې
دَ محمد عمر بلبل افغان دَ خوا ورکړې دَ قلمي نسخې څخه چاپ کړې
دې. چه دَ صفحه نیکه یې په ۱۲۱۲ هـ کې کتابت کړې وُو. دې
دَ مستالي کلي او سید ونکي او په ذات مورچه خیل مهمندوُو.
"بازنامه" خوشحال صاحب کمال دَ عقرب په میاشت کې
د ۹۲ کالو په عمر کې په شپږ و ورځو کې په ۹۱۹ بیتو او ۷۸ فصلو کې
لیکلې وه. فصلونه دا دي (۱) پیژندګلوي دَ باز (۲) رنګ دَ باز
(۳) ایشان دَ باز (۴) ترینګ دباز (۵) دَ بندونو باز (۶) بیخال دَ باز
(۷) نوئ باز (۸) الخته کول دباز (۹) الخته کول دباز په ښکار
دَ مرغابۍ (۱۰) په باز دَ نورو مرغانو ښکار کول (۱۱) په باز تشویق
دَ ښکار دغزل په طرز (۱۲) دَ جره تعریف (۱۳) دَ باښے ښکار (۱۴)
دَ نوي باز نیول او ساتل (۱۵) دَ باز صافول په غزل سره (۱۶) وباز ته
مهره ورکول. (۱۷) دَ باز راایستل له کریزه (۱۸) دَ باز کښېنول په کریز
(۱۹) دَ باز دارو کول په سبب دَ غلط ... په کریز کې (۲۰) دَ باز راایستل

له ګرېزه (۲۱) بتوله کول د بازاود بالښے (۲۲) خورب کول وچ نګر باز (۲۳) بیان د طبع چه د کوم ځناور بنه ده- (۲۴) دابدارے د غوښو ورکولو. (۲۵) صحیح تعریف اولتوثیق د میر ښکارے په طرز د غزل (۲۶) د شاهین ښکار (۲۷) د چرغ دستکشی (۲۸) د مرغانو رنګونه (۲۹) د چرغ رنګونه (۳۰) خلط د چرغ تیارول -(۳۱) د بارے اصل (۳۲) جفت کول د غیر جنس (۳۳) رالیتل د بچوله ښانه (۳۴) د میر ښکارے ابتدا- (۳۵) د باز خلط په سبب د غوښے (۳۶) د قبل قورت اوج زحمت (۳۷) د باز چینجی (۳۸) دهکا ټوخه (۳۹) د باز دسپږ [illegible] (۴۰) د باز عقله (۴۱) د باز دستر ګو د پردے علاج (۴۲) د باز د خشکئ علاج (۴۳) علاج د باز چه وچے غوښې یے خوړلی وی -(۴۴) د باز د ستئ علاج (۴۵) د باز د پر ګرځدان علاج (۴۶) د باز د بادو علاج (۴۷) متفرقات-

(۵) صحت البدن :- دا د صحت د ساتنے او د طب په لسم کی غالباً چه منظوم کتاب دئے نا چاپه دئے-

(۶) سوات نامه :- دا تقریباً د څلورو سوو شعرو په واره بحر کی مثنوی ده- داسی معلومیږی چه د اتو سیلابو بحر دئے- په دے کی د سوات او د سوات د خلکو او د بابا د مشورو و د دور وحال وی- د ه د سواتیانو د نامرتئ ورځی څه ناخوښی کړے ده- نا چاپه دے-

(۷) فرخ نامه :- دا د توری و د قلم بحث دئے- اغلبه ده چه منظوم به وی، نا چاپه دی-

(۸) فراق نامه :- دا د خان جنت مکان د حبسیا تو یعنی د بندی خانے د شعرو مجموعه ده چه غزلی مثنویانی پکښی دی - ناچاپه دی - او ضخامت یے نامعلوم -

(۹) زنځیری :- دا د مختصر نویسئ (SHORTHAND) یوه طریقه وه چه خان بابا ایجاد کړے وه معلومیږی چه د خط شکسته په طرز باندی د نثر د لنډ لیکلو کتاب دے - دا په نثر کی د خان بابا د مضامینو مجموعه ده - چه د ده علمی نثری شاهکار دے - دا کتاب هم عبدالخالق خلیق صاحب د خپلے ادارے نشر و اشاعت پیښور څخه چاپ او خپور کړے دے - دا هم د پیښور د عجائب خانے (museum) د مهتمم محمد عبدالشکور دریافت او پیشکش دے چه په سنه ۱۹۵۲ء په ډیره ښکلے بڼه کی چاپ سوے دے - د کتاب پیژندګلوے بناعلی سمندر خان سمندر د بدرشو او سریځه یے محمد عبدالشکور لیکلے ده - دا کتاب خوشحال بابا د څلور پنځوس کالو په عمر کی په ۱۰۷۶ھ کی لیکلے وو - قلمی نسخه یے په ۱۱۱۹ھ د خوشحال خان د لمسی افضل خان خټک په وینا عبدالحلیم کاتب په نستعلیق خط کی لیکلے وو -

په دے کتاب کی چه کوم عنوانات دی هغه شلو بنے دی - شل هنرونه دی او شل خصلتونه دی - هنرونه دا دی -

(۱) د خان معرفت (۲) علم (۳) خط (۴) شعر (۵) تیر اندازی (۶) آب بازی (۷) اسپ تازی (۸) ښکار (۹) شجاعت (۱۰) سخاوت (۱۱) معاشرت ورواج (۱۲) د اولاد تربیت (۱۳) تادیب د خدم وحشم (۱۴) اسباب

معیشت (۱۵) زراعت و دهقانیت (۱۶) تجارت (۱۷) تحقیق و نسب (۱۸) علم موسیقی (۱۹) نرد او شطرنج (۲۰) تصویر و نقاش۔

شل خصلتونه دادی (۱) مشورت (۲) عزیمت (۳) خاموشی (۴) راستی (۵) شرم و حیا (۶) خلق نیکو او خوشخوئی (۷) مروت (۸) عفو و کرم۔ (۹) تمیز (۱۰) عدل و انصاف (۱۱) توکل (۱۲) دخپل نوازش شرم (۱۳) خوف و رجا (۱۴) د ملک انتظام (۱۵) همت (۱۶) حلم (۱۷) غیرت (۱۸) حزم و احتیاط۔ (۱۹) طاعت و ورع (۲۰) استغفار۔

دا کتاب د "گلستان سعدی"۔ د "سیاست نامه" نظام الملک طوسی او د "ادب الدنیا والدین" د الماوردی غوندی د اخلاقو او فضائلو کتاب دی۔ او ځائے په ځائے شعرونه هم خان پکی راوړی دی۔ دغه رنگه دا کتاب د فارسی د "اخلاق جلالی" "اخلاق محسنی" او "اخلاق ناصری"۔ یاد نظامی عروضی سمرقندی "وچهار مقاله" ته هم ورته دی۔

(۱۰) کلیات خوشحال خان:- دا تر ټولو مشهوره کتاب دی۔ او د خوشحال د شاعرئ شاهکار دی ـــ

تقریباً د زرو مخو غټ کتاب دی۔ د خپل شهرت او مقبولیت له سببه دا کتاب څو واره چاپ سوی دی۔ غالباً اولنی وار په کال ۱۸۷۰ع کی ډاکټر ایچ۔ ډبلیو۔ د بیینبور د بندی خانے د سپرنټنډنټ په حکم سره د نظام بخش داروغه تر اهتمام لاندی کلیات خوشحال خان چاپ سو۔ دا نسخه اوس هم لږ لږ موندل کیږی۔ په ۱۹۲۹ع کی د هوتی ضلع مردان حاجی عبدالرحمان تاجر کتب دا کتاب چاپ کی چه

د مولانا عبدالمجید سعدی افغانی یوه عالمانه مقدمه هم ورسره ده - غالباً چه په ۱۹۳۸/۱۳۱۷ ه شمسی کی ستر پوهیتی او غښتی پښتونکی علامه عبدالحی خان حبیبی د کابل د یوه سیر حاصلی مقدمی د کتاب چاپ کړی : په دی نسخه کی ترهوتی نسخی ۷۴ غزلی ۲۰۷۰ رباعیانی، ۵ قصیدی او په مجموعی توګه ۱۴۰۰ اشعار زیات دی - د بابا د کلیات یوه خوشخطه نسخه د اجمل خټک سره ده چه په نمغه کی یواځی غزلیات وقصائد دی په ۱۹۵۲ع کی لمړی وار او بیا په ۱۹۶۰ع کی دویم وار د پیښور ادب پالونکی او پرلیښتونمنی پبلشر عبدالخالق خلیق - کلیات خوشحال خان د دوست محمد کامل د عالمانه او مفصلی مقدمی سره چاپ کړی - غالباً په ۱۹۶۵ع کی د پیښور د سیمی لیکوال سید رسول رسا د خوشحال کلیات سره د بازنامی" او فضل نامی" وغیره - د "ارمغان خوشحال" په نامه د خپلی مقدمی سره د یونیورسټی بک ایجنسی څخه چاپ کړی دی - د خوشحال کلیات تقریباً ۸۰۵ غزلی لری - قصیدی یی ۶۱ دی - او رباعیانی ۱۶۰۴ دی - قطعات ومتفرقات ۱۲ دی - د دوست محمد کامل د نسخی د مخوشمیر ۹۶۶ دی اندازاً د کلیات ۴۰۰۰ اشعرونه په غیر کی ساتلی دی -

## شاعری :-

د خوشحال خان لوی صنت د ده توریالیتوب دی - دویم صنت یی شعر کوی ده - د ده د توریالیتوب څخه د ده د حماسی یا رزمیه (EPIC) شاعری ریښنی راوتلی دی - ځکه د ده چه حماسی شاعری ملی او

قالی شاعری وی- په تیره بیا هغه وخت چه د اقال (SAYING) نه وی -
حال (DEED) وی - د خوشحال خان عظمت نشان لوئ خصوصیت
دا دئ چه دئ هم د توری تخښتن دئ او هم د قلم دا سی صاحب السیف
والقلم خلک په تاریخ کی بیخی لږ تیر سوی وی - د عرب لوئ او نامتو شاعر
امرؤالقیس با توره سړئ وُو- د کنده کورنئ د باچهانو څخه وُو- جنګ وجدل
موروثی ورپاته سوئ وُو- کوم وخت چه ورته د خپل پلار د مرګ
حال ور ورسیدئ نو ده وویل - ؎

اَرِقْتُ لِبَرْقٍ بِلَیْلٍ اَهَلْ
یُضِیئُ سَنَاهُ بِاَعْلَی الْجَبَلْ

ما د شپې وبریښنا ته کتل چه رڼا ئې د غرو پر څوکو بریښیده -"

اَتَانِیْ حَدِیْثٌ فَکَذَّبْتُهٗ
بِاَمْرٍ تَزَعْزَعُ مِنْهُ الْقُلَلْ

ماله یو خبر راغئ مانه و منائ - دا سی خبر چه غرونه سره
ښوروی -

لَقَتْلُ بَنِیْ اَسَدٍ رَبَّهُمْ
اَلَا کُلُّ شَیْئٍ سِوَاهُ جَلَلْ

دا چه بنی اسد خیل با چا مړ کئ - تر دې خبره هر شی سپک
دئ"

بیا یې د خپل پلار د مرګ د بدل اخستو وس وکړ - خو دښمن پرزور وُو - پای ته یې خپلې توری وزغرې د مدائن صالح وسموءل عادیا نامی یو عیسائی سردار ته امانت کښېښو وُلے او په خپله د قسطنطنیې رومی قیصر له د کومک د پاره ولاړ - هلته د دښمنانو د دښمنې له کبله په چم چم کې د زهرو ډک کالی په واغوستلے سو چه هم د هغه له اَمله مړ سو - او د پلار بدل یې هم هغسې پاته سو -

د ایران ملّی شاعر فردوسی طوسی ۵۳۳۰/ تر ۱۱ ۴ ھ په خپله غټه او ضخیمه شاهنامه کې د قبل اسلام د آتش پرستو ایرانی واکدارانو مدح سرائی وکړه - او د رستم و سهراب د ضحاک او د جمشید - او د دارا او د سکندر او نورو ډیرو د باتوري او دلاوري قصے یې په ډیر خوند بیان کړې دي - مګر هغه تېول "حدیث دیګران" دي - پرده هیڅ هم نه دي ورغلې - د غربي ژبې ستر شاعر ابوالطّیب المتنبّي - ۵۳۰۲/۳۵۴ ھ لېږ و ډیر جنګیره هم وُو - او ټول عمر یې د سیف الدّوله حمدانی او نورو واکدارانو مدح سرائی کړې وه - خو یو وخت چه د شیراز باچا عضد الدّوله بویهی د دهٔ څه په ځنبم سو او ځکه یې پسې واستول - چه مړ یې کې - نو مثنّبي د منډه کولو اراده وکړه - خو مړیٔ یې ورته وویل چه داسې نه وي چه خلک پرتا وخاندي چه وتښتېدے او دا شعر تا ویلی دي -

> الخیل واللیل والبیداءُ تعرفني
> والسّیف والرمح والقرطاس والقلم

(د اسانو رسالے - شپه - او بتے بیابان ماپیژنی - دغه رنګه توره، نیزه - کاغذ او قلم ټول ماپیژنی -)

نو دُه له لږ غیرت ورغې او بیرته را وګرځیدی - او دا رنګه په دے شخړه کې وُوژل شو -

نظامی ګنجوی ۵۳۳/۵۹٦ چه د فارسی لوئ رزمیه شاعر دے - او "سکندر نامه" د دهٔ شاهکار دے - ځائ په ځائ یے د فردوسی لاهم رزمیه مناظر نبه قلمبند کړی دی - خو دئ په خپله مرد میدان نه وُو - دغه رنګه امیر خسرو دهلوی ٦٥١/۷۲۵ ھم "سکندر نامه خسروی" لیکلے ده - خو دا دے خبری دی - دَدهٔ خبری نه دی - دیونانی شاعر هومر د رزمیه نظمو الیډ (ILIAD) او اوډیسی (ODESSEY) نو مونه او رو خو دَدهٔ دَشجاعت او ذاتی توریالیتوب په باب ځکه نه سو ویلائ چه دَدهٔ دَ وخت تاریخ په عهد عتیق (ANTIC AGES) کے ورک دے - هاں البته دانګریزی ژبے نامتو رومانوی (ROMANTIC) شاعر بائرن (BYRON) په ۱۸۲۴ ع کې په (MISSOLONGHI) کې په جنګ کې مړ سو - دا یو ښه مثال دے - چه یو شاعر د توری یاد مرانی خښتن هم وُو - په پښتو کے وائی چه چاکر رند هم شاعر وُو - او هم باتور وُو - خو دَدهٔ شعر و توریالیتوب دواړه افسانوی (FACTUAL) زیات دی او حقیقی (ACTUAL) کم دی - دَ اردو "انیس ودبیر" مرثیے دَ اهل بیت دَ ځوانانو دَ ولاوری قصے دی - چه دَدهٔ شخړه دیارلس کاله دمخه تیر سوی دی -

وبله خواته ستراو نر خوشحال دی چه هم تقریباً د دیرشو زرو (۳۰۰۰۰) اشعارو او د اعلی پائے د اشعارو ویونکی دی او و بله خواته د څلویښتو زرو (۴۰۰۰۰) لیکو نثر لیکونکی دی - او هم توریالی و جنګیالی دی - چه د خپل وخت د ښت امپریالی او استعماری طاقت مغلو سره یے په نره توره او په ډاګه جنګونه اوکړو - په نوښارکی د مغلو سره او بیا په ګنبت وږه وږه کی د مغلو د طرفدارانو ښکښو سره د بابا د خرپے جنګونه د ده د غیرت و بریالیتوب پوره ثبوت او نخبه دی - د ګنبت په جنګ کی خودی سخت ټپی سو - په روغ صورت دی د میرانه کله واڅی - لکه د تهانیسر په جنګ کی چه ستر مجاهد محمد غوری د سخت ټپی کیدو وروسته خپلو سپاهیانو د جنګ له ډګره وایست - ولی به نه وی بابا خو هم په خپله ویلی وُو -

په جهان د ننګیالی دی دا دوه کاره
یا به وخوری ککرئے یا به کامران سی

د خان عالیشان ملی او حماسی شعر که ویونخواته د ده د مردانګی و زړورتیا څرګندوی - نو وبله خواته د پښتون قام سره د ده همدردی و خواخوږی څرګندوی او هم د پښتنو عیبونو نقائص - بے اتفاقی - پسماندګی او نوری نیګمرتیاوی په ګوته کوی - دی و مختلفو اشخاصو او اقوامو ته پار یسږی - کلک تنقید پر کوی - شرموی یے او د ازنګه یے د غیرت و د ننګ و ډګر ته تشویقوی او ترغیبوی - په دا وخت کی د ده خلوص او انهماک دومره زیات دی چه هیڅوک هم

دَدۀ په ښکنځلو اوبرو ردوبه نه وري - بلکه لکه دَ پلار دَ ښکنځا یا خوشکي په شان سرخروي - او احتیاج نه کوي - نرخوشحال هغه څه وَیلي دي - کوم چه پرده راغلي دي - دۀ دَ بل نه خپلي خبري کړي دي -

دَ توري او دَ قلم دَ خاوند ملي او رزمیه رنګ دا دۀ -

په خپل نام ونګ چه راسم لیونۍ سم
خبردار کله په سود و زیانے ولګ یم
چه منصب می دَ مغل خوړیو ملک وم
چه منصب دَ مغل نشته اوس ملک یم
که می عمر په شماره ترشپیته تیر دۀ
لا په کار کي دَ سورلۍ لکه اوزبک یم
دَ بل غشی تهو یک هیځ ویشلی نه یم
که ویشلی یم خو بیا په خپل تهو یک یم
مهندی زما دَ کړی لاس وپښے دي
راضي من دَ افریدیو په کمک یم

دَ افغان په ننګ می اوتړله توره
ننګیالۍ دَ زمانے خوشحال خټک یم
او دا سے دَ شیرشاه و دَ بهلول خبری اوړم
چه په هند کي پښتانه وُو بادشاهان

یا هغه پښتانه نوروُو داڅه نورسوُل
یا دَخدائیه دےُ داهسے شان فرمانے
کومه چاره دَمغل تر پښتونے ښه ده
اتفاق ورځنی نشته دیرار مانے
که توفیق دَاتفاق پښتانه مو مے
زوړ خوشحال به دوباره شی په داځوانے

بل داچه ــ ه

ومغل وته به هغه چار ښکاره کړم
چه رافی راڅخه روح دَفرید خان سی
عاقبت به خدائے ظفر کا دَبازانو
تار په تار به اواره واړه زاغان سی

دَپښتانه فردوسی داحماسی رنګ اوګوری ــ ه

پښتنو ځلیو بیا لاسونه سره کړل
لکه باز منګولی سرے کا په ښکار
سپینے توری یے ګلګونے کړے په وینو
په اهار کی شګفته سولاله زار

ایمل خانے، دریاخانے دواړه سرکے مه وه
هیځ تقصیر دواړو اونکړو وار په وار

دَ خیبر دره ئے سره کړله په وینو
په کړپه یُ هم روان کړ دند و کار
دکړے تر باجوړه سمے غرونه
په لړزه په زلزله سول واړ په وار
په هغه لورے چه کیږی پنځ کالهٔ
نړه ورځ دَ سپینو تورو خره پهار

هم په دغه قصیده کښ پښتونے نظامی لیبی وایُ ۔ ـه

بله هیڅ لیدلے نه سے په دا مینځ کے
یا مغل له مینځه ورک یا پښتونے خوار
په داسی وخت چه وخت دَ نام وننګ دیٔ
دا ئے ننګه پښتانه کا ښه رفتار
پښتانه په توره ښه دی تر مغلو
که په پوهه پښتانه دے ښه هوښیار
اولسونه چه سند و بله وکا
بادشاهانے ورته سجود کاندے اختیار
افریدے ۔ مهمند ۔ شنواری ګوره ټه کا
دَ مغلو لښکر پروت په ننګرهار
زهٔ تنها یکے په غم دَ نام وننګ یم
یوسفزی دی فراغت په کښت وکار

مرګ زما په پوهه ښه تر دا ژوندون دی
دَ عزت سره چه نه وي ژوند روزګار

بل ځائ وائي ـ

چه مغل وته مې وتړله توره
درست پښتون مې وعالم وته ښکاره کړو
اتفاق په پښتانه کې پیدا نه شو
ګنه ما به دَ مغل ګریوان پاره کړو

بیا داسې اوښکې څڅوي ـ

پښتانه واړه بد خوئ دي
کوږ په کوږ کاندي غوږ زه
یو چه سر کاندي په پورته
بل ئې وُوهي مغزه

یا نورې اوښکې سره دَ ساړه آه توي وي ـ

نن په درسته دَ هندوستان دولت دَ دوئ وُو
پښتانه دَ کم همت نه وائي جهاله !

بیا ئې دَ طنز په غشو ولې خودوئ نه ویښیږي۔

پښتانه په عقل پوهه چه نا کس دي
کوته سپي دَ قصابانو دَ جرس دي

بادشاهی ئې دَ مغل په زور وباسُلـه
دَ مغل دَ منصبونو په هوس دی
اوښ لـه بَاره سـره کورته ورغلئ
په اولجه دَ اوښ دَ غاړې دَ جرس دی

دَ خوشحال خان شاعري يو ژور درياب دی چه دَ فِکر هر ډول مرغلرې پکې موندلے کيږي - يو عجائب خانه ده چه دَ حُسن هر قسم تصوير پکې پيدا کيږي - لکه رزم - بزم اخلاق - تصوّف - تغزل - اجتماعيت - سياست - تفلسف - ژور خيال - اوچت معناوي - او پير محمد کاکړ دَده په حقله وائي
که څوک بحر مواج والے ورته ښائی
په ديوان کې يې موندلے شي هر شان شعر
ميجر راورټي وائي چه "دَ مغرب دَ شاعرانو په شان دَ خوشحال خان د پاره هيڅ يو مضمون هم غير نه دی -" دَ غه رنګ بيډولف (BEDULF) عبدالحئ حبيبي اَو صديق الله رښتين دَده دَ کلام دَ جامعيت ذکر کړے دی - عجبه خو داده چه دَ توري وقلم څښتن په خپل ۷۶ کلن عمر کې دَ قلم کار بيخي ډير کړے دی - که دَ کليات - باز نامے" فضل نامے، فراقنامے - فرخنامے - سوات نامے - او صحت البدن اشعار تول وشميرل شي - نو دا تعداد و دير شو زرو (۳۰۰۰۰) ته رسيږي - او دغه رائے - بياض او دستارنامے دُ نورو نثر چه سره يو ځای شي -

نو خلو لښت زره لیکی یا بیتونه کیږی - نو چه دَدهٔ دَ عمر لمړی شپاړس
کاله پریږدو نو اوسطاً په شپیته کاله کی خان عالیشان دَ کال پنځهٔ سوهٔ (٥٠٠)
شعره او اته سوه (٨٠٠) لیکی د نثر یعنی دَ ورځی اوسطاً دوهٔ شعره
او دَ دے لیکی لیکلے - چه سره دَ جاګیر و دَ حکومت دَ چارو او دَ جنګو ښخړو
ډیره حیرانونکے خبره ده - او دئ هم په هغه دَ فوق العاده
(RDINARY) استعداد او همت په ثبتنانو کی شمیرل کیږی - چا
چه یو لک یا زیات وکم شعرونه وئیلی دی لکه نظامی جلال الدین
رومی - فردوسی - عطار - امیر خسرو او عبدالقادر بیدل -
دَ خوشحال صاحب کمال په تغزل کی دَ فکر ژورتوب - تنوع
حکمت - فلسفه او لفظی و معنوی ښکلا موندل کیږی -

دائے دراز راز تغزل نمونے دی -

شیخ دی کونج دَ صومعهٔ به ګلګشت کرم
دَ بهار ګلونه ګاته هدایت کا
لکه وژغوری کبلئ په سر غنزار کی
دَ خواره او ربه ترسیوری سترګی ستا
څه خوښئ ئے ګی ایښی دی پو هیږې
هر نفس چه دی واته نسوا ستہ کا !
دَ چمن ګلونه واسول — دَ خوشحال نه سوزړوا
ورځ او شپه په لار روانی قافلے دی
نیک و بد دَ قافلے په لوئ ستله کا

نوبهار سو بیا نرگس په باغ مستی کا
چه صبا مې په سنبال درازدستی کا
عطارد ی نور قلم له لاسه کښیږدی
چه په دا خوبۍ بهرام انشاء املا کا
د فرقان په هدایت فاروق پوهیږی
نه بوجهل بولهب ته هدایت کا
ما په ورو ستر ګو ډیر یاران خوړلی
په ځیر ځیر دی مخ نه ګورم له کسته
چه بلاء د قامت راته ښکاره سوه
ګویا پاڅیده بلاء د قیامت
نن مې ولید هغه مست
غنچه خوله يې نیت وهت
په دوو زلفو عنبر فشی
په دوو ستر ګو مې پرست
نه پیوه پیاله د میو
نه د درست جهان خراج
تحسین لره بل نه لرم چه هونبره ډیره مدح
د خپل شعر سخن کرم که دا عیب وی که هم دی وی
ګل ګښتنه ده د توری
که کابل وی که کشمیر

هوسئ ستڙکی لب شکری
په غابنو ئې مشغلری
پرده قاز سته پرده باز ـ کله پرېمسی پرواز
نوربا غونه ده نوروز په وخت غوړېږی
په اهار کاغوړ بله ده کابل باغ
دواړه تر ونه دی ناهل
ابوجهل ، ابولهب شول
په غم او اور چه عشق ئې نوم دی
که ابراهیم ، که کلیم سیم !
وړاندی ورو ستو دوه عدمه
په دامینځ کی یو دوه دمه
که مثال یې له ما غواړے
عشق مزرے عقل نیله دی
ساقی راکه ومائی
یو څو جامه پیاپی
داهسم ظلم دی که کورے
چه بے میو څی پسرلی

ده بابا په غزل کی ده علامه اقبال غوندی بلند آهنګی او چتوالی او دربے د دریز سته ـ آخر خو شخصیت یې لم دغسی دی چه ولتصوف ته ئې خیر سو ـ نو دلته لم ده پښتو ده صوفی شاعر عبدالرحمان

بابا تر تصوّف لا هم زیاته بلند آهنګی او ژرف نګاهی سته ـ لکه دا شعرونه ـ

یوی بیا مو نه په هر ځای
چه می اوکړو دَ زړه سیر
عاشق لهر زمانه غزا کا
په تیره توره د "لا"
درویشانه دَ "لا" په توره
همیش لو د ما سوا

دَ خوشحال په کلام کی یو څه نیمګړتیاوی لکه جنسیت او لذّیت چه دَدی دَ اظهار دَپاره دَ عریانیت لار را مخ ته سوی ده ـ لکه دَ خپلو ارینتو یا مینځو بیانی یا دَ خپل جنسی قوّت دَ بیخی زیاتوب ښکارندونه ـ دا به مو ږ دَ خان پر ساف دلی او خلوص محمول کو ـ او دَ دهٔ دَ سراپا حُسن و خوبی ذات په مقابله کی دا عیوب لږ او دَ نه برابر دی ـ یو بل اړخ چه دَ دهٔ دَ مثالی شخصیّت او ستر کردار چه لږ و څیړنا موزه (۱۷۹۹) دی هغه دَ دهٔ خانی یا جاګیرداری ده ـ او دَ دهٔ کلام بلند آهنګی او دَ لهجی لوړوالی او تیزی هم دَ دغه جاګیرداری نتیجه ده ـ خو دی په جاګیرداری کی هم دَ انکسار ـ سخاوت، مروت او حلال و حرام دَ اسلامی اخلاقو او ابدی ښیګړو ځان پابنده بولی ـ لکه چه وائی ـ

چه کټل، خورول، بخښل کا خان هغه
چه لری توره دَ توری خان لهغه

دی دَخانی په جامه کی درویش خدامت دی دَسردار دپاره داشیان لازمی کنی۔ ؎

سردار ته بویه دا یو خوشخیزه
چه مړنی وی زما عزیزه
دادود هش لری دین و دانش لری
نه بې رشتیا وی نه بې تمیزه

خوشحال خان یو حکیم او نباض دی۔ دی نه یوائی دَ علم ردالنسان (ANTHROPOLOGY) ماهر دی بلکه دَجامعه شناسی (SOCIOLOGY) هم دَمزشناس دی دَپښتنو دېرو قامو یا مختلفو افرادو په لړکی یا دَګروپلو (GROUPS) په باب دَده تاثرات ژوړ او دېری لیکه وی لکه وا۔ ؎

تورانی خو دَجنجال دی دَ پر خاش
دروغجن، سوګند خواره بهتان تراش
ایرانی دَاشنائی د و فا ر ی
دَخلقت، دَمروت دی، دَمعاش
پښتانه دَبدنیتی دَخصومت دی
په حیا په شجاعت یې وکړه شاش
که بلوچ که هزاره واړه چرکین دی
نه یې دین نه یې مذهب ستر یې فاش

ښځه بویه هوسناکه خنده رویه سهرجنه
پاکیزه په ژبیت روزګار کې په ښه بوئ باندی مینه

دَ خان جنت مکان اختراع او دَ ده امتیاز دَ شاهین یا دَ باز مضمون دی چه "بازنامه" دَ هغه بشپړه ثبوت دی - او چه ستر پوهیت او دَ ختیځ شاعر علامه اقبال یې هم مقروض (INDEBTED) دی چه په ۱۸۶۷ ع کې په انګریزی کې ژباړه سوو دَ سلو نظموځه یې دَ خوشحال دَ افکارو څه خبر تیا موندلې وه - خو افسوس دا دی چه علامه اقبال دَ دې پښتانه افلاطون دَ خوشه چینئ یا احسانمندئ اظهار و اعتراف نه دی کړی لکه څنګه چه دَ رومی وَ دَ نور و رهبری منی - دَ خان افکار دَ باز په باب دا دی -

چه دَ بازې ورکوړې تیرې نوکې
تر تتمر به یې ویښتې دَ زرکې څوکې
دَ باښې نظر دَ چتې پَ لکئ
دَ شهباز نظر دَ میور په څوکې
دَ کارګه توره مشوکه دَ ګنډکې ده
قندرا اوت دی دَ طوطی دَ سرې مشوکې

نه میچ یم نه قارغه یم چه په کرومرو کړم
یا باز یم یا شاهین یم ښکار بنکار مړی نه خرم وی

نه یو باز دَ ښکار دپاره
نه که چرګې چرګې هزاری

لکه باز په لوئ لوئ ښکار زمانظر دئ
نه چه کرڅي کوڼکټ نیسي باو خورک یم

د خوشحال خان یوامتیاز دا دئ چه پنځه زامن یې صاحب
دیوان شاعران وُو۔ لکه اشرف خان، عبدالقادر خان، صدر خان،
سکندر خان، گوهر خان، د دوه تقریباً شپاړس رباعیانې د فارسي اردو
او پښتو تر تهولو شاعرانو زیاتې دي۔ دا هم په کمیت QUANTITY کې او
اکثره په کیفیت (QUALITY) کې هم زیاتې دي۔ د فارسي کلام یې پوخ
خو د معزالله خان فارسي کلام د دوه پرهغه زیاتې دئ۔ د اردو فارسي
او پښتو سره آشنا هم لري په نثر کې دستارنامه د دوه د استادئ جامعیت
او مهارت څرګند ثبوت دئ۔

ستا د ښنایست کلونه چیر دي
لمر مې تنک زړه به کوم کوم تهولوم

چاپ سوي میاشتیزه "پښتو"
پېښور جون ۱۹۸۰ع

# رحمان بابا

نن د رحمان بابا کالیځه ده - هو، رحمان بابا یو د غره په شان
لوئ او د لمر په شان روښانه نوم - د سوز و گداز او د تاثیر و انجذاب
یو مرکب - هغه رحمان چه د شاعرانو شاعر، د عاشقانو عاشق، د درویشانو
درویش او د ملنگیانو ملنگ او هغه رحمان چه د پښتو د شاعرۍ د بڼ
طوطی او د بلاغت روح دئ - چه د تشبیه و د استعارے باچا، د معانی
مناره او د تخیل هما دئ - چه د خلوص یو کتاب او د سوز و گداز
یو دریاب دئ -

عجبه خو داده چه څومره قدر چه رحمان بابا د شهرت و د وسعت
څښتن دئ دغومره یې د ژوند حال او کور و وطن سره خو بې خبر
دئ - هغه د کیمیا د بوټي قصه شوه چه نوم یې سته پیدا یې نشته -
د دے قلندر مزاجه او صداقت مآب د ژوند لنډ غونډے حال داسی
دئ - په قام سربنی پښتون دئ - په ذات غوریاخیل دئ - څوک
یې مهمند هم بولي - مهمند و خلیل دواړه غوریاخیل ښاخونه دی -
عبد القادر خان وائی - چه

زهٔ ختک د یار په غم تازه سم
غوریه خیل رحمان که سوو رځی ستړی

په خپله بابا وائی - ۵

زهٔ عاشق یم سرو کار می دیٔ له عشقه
نه خلیل نه داؤد زیٔ یم نه مهمند

د پیښور ه ځنې چه کوهاټ له ځی یو شلو رینځه میله لیری یو کلیٔ راځی چه نوم ئیٔ "بهادر کلیٔ" دیٔ - و دغه تپاتوب ته دا فخر حاصل دیٔ چه دلته د نړیٔ د لوی شاعرانو د لاړغمی عبد الرحمان زوکړیٔ دیٔ - د زیږیدو نیټه ئیٔ نه ده معلومه ولی چه موږ خلک په ژوند د چاقدر نه کوو-

د دے صاحب معرفت او روشن ضمیر شاعر د کشنوڼی حال او د زدکړی او د تعلیم حال ئیٔ هم نه دیٔ معلوم- خو د دهٔ د شعر لوړ تیا او د ذهن پیچلیا د دے خبری بشپړه ثبوت وړاندی کوی - چه بنه عالم وو- او بله دا چه په چشتیه سلسله کښی ئیٔ لاس نیوه کړے وه- د پښتو شاعرۍ بابا آدم او د شعر پلار خوشحال جنت مکان او رحمان عظیم الشان دواړه د یوے زمانے خلک ، د یوهٔ چمن بلبلان او د یوهٔ گلشن نغمه سنجان وو- زموږ دا ستر شاعر د اوله ځنه لا فقیر حالهٔ وو د سماع د مجلسو او غونډو د کړون اثر په ده کښی هغه سوز و گداز او جذب وجنون پیدا کیٔ کوم چه د دهٔ په شاعرۍ کښی دا سی رواں دواں دیٔ - لکه د انسان په بدن کښی وینی -

پاڅئ ته یې دا حال سو چه رحمان بابا وُو او استغراق و محویت دو-
وجد و سرمستي وه - او دئ وُو - تر دې چه لمونځ هم ئې پاته سو - او
شپه و ورځ یې د ژړا سره کار سو - په هغه لیونتوب کښې چه به یې څه
د خولې څخه د شعر په صورت کښې وتل یو څو یارانو او ملګرو به یې
چه تل به ورسره وُو - لیکل، نو د دغه نوم ورکو ملګرو زیار و مرسته ده
چه دیوان رحمان یې تر موږ پورې را رسولی دئ - نو څوک وائي چه
نه، رحمان بابا خپل دیوان په خپل ژوند کښې په خپله مرتب او بشپړ
کړئ وُو - او په ثبوت کښې د دهٔ دا شعر وړاندې کوي -

یو کتاب په ټول سر بې کښې چا او نه کړو
بې رحمانه چه یې او کړو دا کتاب

وائي دده سکر و محویت له کبله د هغه وخت عالمانو د پښتو
پیرې صوفي د کفر حکم ولګاوئ - دا د ۱۶۰۰ ع پېښه ده - دا وخت
رحمان بابا په یو بل کلي "قصه خواني" کښې هستوګن وُو - د دې فتوې
وروسته ژوند ورته تریخ سو - وروسته د عالمانو یو بې ځلې په دهٔ توبه
وکښه او دهٔ دویم وار لمونځ شروع کړئ - د سرود و د سماع محفل یې هم پرېښوو
وائي چه اوس هم هغه درخته په "هزارخواني" کښې ولاړه ده چیرې
چه په دا فقیر روښن ضمیر کښېنوست - او خپل اشعار به یې وئیل، جوړ و
او رُول -

کوم وخت چه د پښتو شاعرۍ دا ځلاند لمر د فنا په افق کښې دوب
سو - او د مرګ په چمبو کې ګران ارزښته انسان خپل لاس ته راوستی -

نوئے جنازه د "بهادر کلي" "خخه" "هزار خوانۍ" له راوړل سوه. دلته به یې خو د
ملونځ ورکړی وي - ورسته یې د نامتو پیراو وزرګ اخوند درویزه په هدیره
کښې دالعل بدخشان وتوروخاورته وسپارئ چاچه خپله فقیري د
باچاهانو پرباچهۍ نه ورکوله - اوچه په ډانګ پیلی یې وېلي وُو - ے

خوشحال او دولتاني غلامان دي
زه رحمان په پښتو ژبه عالمګیر یم

د قبر سره یې یو کښتۍ ماجت هم سته. په او سنو کلو کښې خپل
قام د ده قبر په سنګ مرمر پخ کړی دی - خو د میر درد د دهلوي
دا شعر د ده هم حسب حال دئ - ے

اہل فنا کو نام سے جینے کے ننگ ہے
لوح مزار بھی میرے سینے پہ سنگ ہے

د بابا پر قبر باندې یو مجاور هم ناست دئ -

د رحمان بابا پر شاعري څه لیکل یا ویل د لمر په مخ کښې ډیوه
بلول دي چیرې چه د حافظ، وسعدي، غالب واقبال - شیکسپیر وملټن
او کوئټه نوم راځي - هلته به د عبدالرحمان مهمند نوم هرومرو راځي - معمولي
معمولي خبرې یې په داسې فلسفیانه انداز کښې کړې دي چه انسان
کوته په غاښ کښې ورته نسي - لکه دا د ده شعر ے

اسمان تو ره په رکوع سو
زمین تو ره په سجود

یعنې په عبادت کښې د انسانانو ګناهونه ته ټیټ او پرځکه واسمان

لګیږي. سجده پر ځکه ده. او رکوع بالا. او آسمان هم پورته دی.

که ایاز غوندې بنده سې

نور به ناز کړې په محمود

یعني اول ځان خاورې که بیا لوړتیا مونداې سې

هلاک ځکه شي رحمانه

چه پاک نه شي دا وجود

وګوره! د مرګ یې څنګه ناولړه شاعرانه سبب بنوولی دی.

سترګې چه بینا سي د تورو د سپینو فرق ښکاره سي. ځکه خو رحمان بابا وایي ـ

په نظر د بې بصر

لکه شام هسې سحر

لکه شام هسې سحر

لکه سنګ هسې ګوهر

وګوره! څه بې ساختګي ده. ـ

ته چه ما منع کوې د یار له دره

کاشکې باد د سحر منع په بوستان کړې

دی وایي د سکندر اینداره پریږده د خپل زړه اینداره وګوره هر څه به پکښې ووینې ـ

د سکندر په خیر جهان به دې روزي سي

که سر کوز په آئینه د خپل زانو کړې

د انسان په قول و فعل کښې کله کله څرګنې تضاد وی۔
رحمان بابا هم ودے حقیقت ته اشاره کوی چه وائی ۔

په شپه پروت یئ د مغان په میخانه کښې
او د ورځې مخ په لوری د محراب کړے

د یو عام سړی او د یو صاحب معرفت سړی تر میان چه کوم توپیر وی
د رحمان بابا د اشعر هغه واسی بیانوی ۔

که نور خلک قدمونه ږدی په محکه
ما دئ ایښئ په اسمان قدم د زړه

د فارسی یو شعر دئ ۔

دل بدست آور که حج اکبر است
از هزاران کعبه یک دل بهتر است

رحمان بابا هم دا خیال داسې څرګند وی ۔

د خلیل تر کعبې دا کعبه ده لوئیه
چه آباد که څوک ویران حرم د زړه

یا دا چه خپل زړه چه د تقوی مرکز کیږی حجه
کار وسو ۔ د نیستئ و د هستئ په لړ کښې څنګه ناز کخیال بیانوی چه
وائی ۔

نیستی واره د هستئ په دنبال ګرځی
نه د و بیړې په اوبو کښې تش جهاز

خپله ژبه هم کلا ده هم بلا ده ۔ رحمان بابا دا خیال داسې ښائی ۔

که بې ځایه زړکی نه وکښائي آواز
نه صیّاد به ترې خبر وُو نه شهباز

دَ دنیا ژوند بې اعتباره دئ ـ دَ رحمان دَ خولې څخه دا خبره واوُره چه وائي ـ

ه

دا جهان دَ مسافرو یو رباط دئ
تله دی تله دَ دې کرا راسه راسه

شیخ سعدیؒ وائي ـ

ه

هر که آمد عمارت نو ساخت
رفت و منزل به دیگرے پرداخت

رحمان بابا وائي ـ

ه

ودانې یې همه واړه ویرانې دي
راسه وګوره مانړې دَ دقیانوس

چه نه کار په هغه څه کار ، رحمان بابا دَ دې تعبیر داسې کوي ـ

ه

که کډ اوبل په غولي غرض نه کا
سپي به نه که په کرابانـدي غرض
په ساحل کښتۍ دَ هیچا نه ډوبیږي
که څوک نه که په دریابانـدي غرض

انسان زیاتره دوراندیشي نه لري ـ رحمان بابا دَ دې خبرې مثال وراندي کوي ـ

پہ نسیہ ئې نظر نہ کاندی بے نقدہ
کہ څوک حوری ورتہ ستائی یا براق

دَ رحمان بابا پہ نزد دَ توحید مقام ډیر اوچت دے۔ دی وائی۔ ؎

پہ دوئی کښے چہ ورنہ تر توحیدہ
څو چہ ذرہ دی خالی نہ سی دَ اشراک
دا ھمہ وارہ اشراک دی چہ لیدہ سی
نور دَ حُسن بالاتر دی لہ ادراک

بغہ رحمان چہ دَ دُنیا داری حال بیٔ داؤ چہ۔
څوک دی را کاندی قسم پہ کرد کار
کہ دِرم لرم پہ کور کښے یا دینار

بغہ پہ خپلہ مسکینی او فقیری ډومرہ خوښ دی چہ لہ دنیادارو سرہ لا ھم شناختے نہ کوی۔ ؎

نہ سی دَ خانانو لہ مَلنګو سرہ مینہ
چرتہ عزیز خان چرتہ ملنګ عبد الرحمان

خو دا دَ خپلے زړہ پہ دنیا کښے ورک عبد الرحمان کلہ کلہ دَ خپلے زمانے پر حال ھم یو نظر اچوی او وائی۔

پہ سبب دَ ظالمانو حاکمانو
ګور او ګور او پیښور درے وارہ یو دی

کلہ چہ دَ جذب وجنون ښخ را خلاصے سی نو دَ

خپلې شاعرۍ ستائنه هم کوي او وائي۔

چه منکر پرې اعتراض کولائې نسي
دغه شعر د رحمان دئ که اعجاز

او د خوشحال خټک ته کوا نبيړي۔ ؎

که يې شعر د رحمان مهمند تر غوږ سي
غوږ به نه باسي په شعر د خوشحال څوک

چه څه نه وي څوک نه کا نيږي۔ د رحمان
دا تعلّياني بې ځايه نه دي۔ دئ په صوري و معنوي دواړه
لحاظ د شاعرۍ د ميدان پهلوان دئ۔ د محمود غزنوي خپل
ياد ده په لږ کښې د لب شعر دئ چه۔

محمود غزنوی که هزاران غلام داشت
عشقش چنان گرفت که غلامِ غلام شد

رحمان دا شعر داسي وائي۔

و محمود ته نظر کوه مدام
چه غلام کړ و خپلې مينې د غلام

د دنيا اسرار هيچا معلوم نه کړ۔

کس نکشود و نکشايد بحکمت اين معمار

رحمان بابا هم وائي ؎ خبر نه يم چه يې راوستم له کومه
بيا مې کوم طرف ته استوي چه درومه

رحمان خپل شعری اهمیت او مقام پیژنی چه وائی ۔

هم نغمے کاندی هم رقص که هم خاندی
د رحمان په شعر ترکه د بابکرام

دا لکه چه د حافظ شیراز د دے شعر ازانګه دی ۔

بشعر حافظ شیرازی ګویند و می رقصند
سیه چشمان کشمیری و ترکان سمرقندی

د ګل خان او د جمال خان غوندے واقعات بدله د رحمان
په کلام کښے یوه خونده وره اضافه او د اصلی یارئ و دوستئ نمونه
ده ۔ چه یو یار د بل یار د پاره ځان سوځی ۔

د یر یاران وو د ګل خان د جمال خان
په کار یو نه سو په وخت د دارستان
چه د آل و د اولاده سره وسول
څوک دی نه که خرائے د امشی مظلومان
والا هور ته د یارئ شرطونه څه دی
چه په اور کے دواړه وسوځی یوشان

د درویشانو د رفتار خبره رحمان بابا داسے کوی ۔

په یوه قدم تر عرشه پورے رسی
ما الیدلے دے رفتار د درویشانو

د تصوف یو څرک یے دا دئ ۔ ۵

ته خطبه په ممبر څه لولے خطیبه
قدم کیږده په ځان باندے ممبر دادئ

دَ مکے سفر آسان دئے، ھغه مرد دئے
چه دَ ځانه سفر وکړه سفر دادئے

یوه غزل یئے دَ اوبو وړکښت وَ دوکلی په باب لیکلے دے
چه سرئے دادئے ۔

ه

ھر چه کښت یئے په باران او یه سیلاب وی
دَ ھغو عمر به واړه په عذاب وی

دَ خپلې ساده دلۍ پښتونوالې بیان کوی ۔

په امید دَ زلفو ونښتم په دام کښې
رو ټیلې وم ساده دل په ھندوبارکه

دَ قبر خیال څومره ډیر ښکاره دئے رحمان بابا وائي ۔

دَ لحد دَ تاریکۍ علاج به څه کړے
ته چه دلته کے بیریږے په تورتم

دَ خپل ایمان و عقیدے په ټینګوالی نازکوی او وائي ۔

دَ کاملے عقیدے له برکته
دَ دوے په غاړه ناستے یم شاھجهانیم

دَ ھیرو دَ رانجها په قصه ھم خبر دئے او وائي ۔

ډیر ھندکی په جهان ګرزی چانه یاد دی
عشق عالی پایه دَ ھیر او دَ رانجها کړه

دَ مجنون دَ لیلٰے دَ سپی دَ ګچولو
وقصے ته اشاره کوی ۔

عاشقانِ دَ یار دَ سپو هم زار ویږی
کنړه ما دَ رقیبانو څخه پروا کړه

دَ رحمان بابا په شاعری کښې نازک خیالی او
نکته آفرینی ښځې ډیره ده۔ دَ دې دوه قِسمونه دی یو خو نوی
خیال وړاندې کول۔ چه پردواړو مصرعو محیط وی۔ دویم یوه
خبره په لمړی مصرع کښې وړاندې کول۔ او دَ هغې مثال یا ثبوت
په دویمه مصرع کښې وړاندې کول۔ دا دَ فارسی دا ستری نامتو
شاعر عبدالقادر بیدل انداز دی۔ دَ فارسی نظیری نیشاپوری دَ دې بانی دی۔
په اردو کښې غالب دَ بیدل په تقلید کښې دا رنګ په فریاد سو۔ او دنیا
هم تسلیم کړو۔ چه دا طرز ډیر ګران دی۔ دَ رحمان بابا یو څو داسی
شعرونه دی۔

دَ سیلاب په مخ کښې کله دَ چا خوب سی
شیرینې خوب راڅخه ډیری ژړا یوړ

ما په هجر کښې لذت دَ وصال بیا موند
دَ یوسفؑ ملاقات سوم په زندان کښې

زه حیرانه ستا دَ ورځو په تور خال یم!
کافر څرنګه سجده کا په محراب کښې

دَ پښتو او سنی لوی شاعر عبدالغفار بریالی هم دَ خال

او د گیسو و د تندی استعاره د هندو و د کافر په محراب کښی د سجدی کولو سره کوی - شاید چه دا د رحمان بابا د کلام د مطالعی اثر وی -

زمانه په اسلام کفر سمه کړ څی
فرق د تور و د سپین کله نابینا که
ستا د زلفو پوری نوری زلفی څه دی
په خاشاک به د جنت ریحان ورنه کړم
په زړه رنګ په سپینو او سکو به بیا موند
که د ترکو ملاقات په سیم و زر وائی
سپین رخسار او مشکین خال در سره صنم دی
که محمود و ایاز ناست سره همدم دی
که دی مخ په زلفو پټ سو باک یی نسته
د حیات اوبه هم پټی په تور تم دی
ستا قامت که څوک شمشاد بولی غلط دی
دلبرکو په سرخ سپین زر کله یادیږی
زړه می یو وړه ستا د مخ په رنګ را زلفو
بار غم په سپین صبا کله پټیږی
غیری مینی دی په څان باندی انبار کړی
په کعبه کښی نښباسی بتان ولی
زړه د نفس په پیروی در شخه لار شو
د خبیث په لاس دی ورکړو قرآن ولی

د رحمان بابا د عام واقفیت او د نظر د پراختیا هم ثبوت ورکوی-

لکه وا -     ه     ستا د غمه په سر کې هسې شور دی

ګویا جوړې په سر ښار د لاهور دی

د خپل کلي "هزار خوانی" بیان کوی -

نه او یا لکه په تن دوه په معنی یو یو

هزار خوانی واړه یو ښار د بغداد دی

د مجاز تیز رنګ یې -

زه رحمان په زړه نرې کړم هغه جونو

چه یې ملاوې د بیښته په شان نرې

د نورو شاعرانو ذکر کوی -

د مرزا، د ارزانی دعوه به پرې که

قدردان د شاعرانو رحمان راغی

د رحمان بابا د کلام موسیقیت د دوه د لوی شاعر کیدو، د

وسې یو شاهد دی - داسې یو څه نمونې یې وادی -

اې زما د زړه آرامه راسه راسه

سرو قده ګل اندامه راسه راسه

مخ د یار شمس و قمر دواړه یو دی

قد یې سرو و صنوبر دواړه یو دی

ناصحان چه وماته کاندې

چیرې دوی هم مینې سوې دي که نه دي

دَ نورو شاعرانو په یوه غزل کښې دوه درې شعره بند وي نو لوئ شاعران بلل کیږي - خو دَ رحمان کمال وګوره چه په یوه غزل کښې یې دوه بیکاره بیتونه هم نه وي - او ټوله غزل یې مرصع وي -

په غزل کښې خو دوه بیته اِنتخاب وي
دَ رحمان شعر همه دئ اِنتخاب

(چاپ سوئ میاشتیزه "اولس" کوټه
نومبر / دسمبر ۱۹۷۵ع

# د رحمان مقام ۲

عبدالرحمان مهمند چه د پېښور د ميمې او سيدونکې او د
اورنګ زيب عالمګير د باچهۍ په زمانه کښې سوې دې. د پښتو
د باغ بلبل د پښتو شاعرۍ د ماڼۍ ښائيسته او د پښتو ژبې د تاج
هغه ځلاند او ځرکيدونکې غمې دې. چه رڼړا او بريښې او ځلا او
ښائيست به تر هغو پورې وي ترڅو چه پښتو په دنيا وي. او ښاتنه
ليکوال به تل په ده نازيږي. نو د دې ملغلرې پر بريښې به تل
ستر ګې بريښې. رحمان بابا د پښتو په لويو لويو او پياوړو شاعرانو کښې
د يو ښکاره او لوړ ځائې څښتن دې. د نړۍ په سترو سترو
او سپېڅلو شاعرانو کښې هم دې حساب کيدائې سي. د ده
په شعرو کښې هغه ټول شيان سته. چه په هغو سره يو شاعر
لوئې شاعر بلل کيدائې سي. د لوئې شاعر لښانه داده چه د ده د شاعرۍ
هم مضمون لوړ وي. او هم ئې توري خواږه و ښائيسته وي. رحمان بابا
غزل ويونکې شاعر دې. د غزل د پاره د عشق و محبت ښکاره کو نه په
اشاره و په کنايه او په ښکلې ډول کښې کول ضروري وي. د دې ماسوا

په غزل کښې د اخلاقو خبرې لکه وعظ و نصيحت او پند و حکمت هم
يوه ضروري خبره ده. بل لوئ شئ په غزل کښې خواښيني
خوابدې او سوځنګ وکړيدنګ دئ چه په فارسي او په اردو
کښې سوز وګداز ورته وائي - تصوّف يعنې د خدائے تعالیٰ تعريف
په راز راز ورنګ رنګ کول او د دنيا د شيانو پيدا کيدو پر سبب ګائيدل
او د دنيا په پريښودلو يارول او د مرګ خبرې کول هم د غزلي پور روايت
دئ چه د فارسئ شاعرئ څخه اردو او د پښتو دواړو له راغلي دئ -
رحمان بابا د خپلې شاعرئ په اوچتوالي ښه پوهيدئ نو ځکه دئ
وائي - ؎ خوشحال و دولتامي غلامان دي

زه رحمان په پښتو ژبه عالمګير يم

بل ځائے د ځان او د خوشحال خان مقابله سره کوي.
او خپل ځان ښه تر ګڼړي او داسې وائي -

که يې شعر د رحمان مرهند تر غوږ سي

غوږ به نه باسي په شعر د خوشحال ټوک

که څه هم د رحمان بابا په خپل ژوند کښې د ے ځکه دومره لوئ
شاعر نه و وبالئ لکه دئ چه خپل ځان بالې - بيا هم د ده تر مرګ
ورسته دنيا د ده د شاعرئ قدر وکئ او ده ته يې دغه ځائے په پښتو شاعرئ
کښې ورکئ - دکوم چه دئ حقدار وو - بعضې خولبتان خپل
نيکه ګان او خپل پلرونه په ښه خوله يادوي - او بلانکي نيکه ، او
بلانکي بابا" ورته وائي - مګر رحمان د دے د پاره بابا بولي چه د ده

کړه دیوان دَپند د نصیحت دَشعرو ډک دئ - او دئ داسې وزرک غوندې کنړی - مثل سوئ دئ وائ که په پښتوکښې لوئ وئیل رواوائي نو به دَ رحمٰن شعرونه په لمانځه کښې وئیل کیدائې - په پښتوکښې د رحمٰن ته دومره په درنه سترګه کتل کیږی - چه څئ خطیبان دَ جمعې په ورځ په خطبه کښې دَ ده اشعار هم وائي زیاتره ملایان او عالمان دَ رحمٰن دیوان هم لری او ساتے په تیروی.

دلته دا خبره څرګندول پکار ده چه دَ شاعری موضوع څه شی وی او کومه شاعری منګنړله کیږی - شاعرئ او دَ ادب دَ مقصد ډیر تعریفونه سوی دی دَ پخوا څخه چه ئې را واخلو زموږ تر وخته پوری په شاعرئ کښې دعشق و محبت خبری ډیری دی. کرسره چه به چا دَ شاعرئ نوم واخست نو دَ هغه مطلب به دَ عِشق خبرې وې او چه چا دَ شاعرئ نوم واوريد و دَ هغه خيال به سمدستی دَ عشق دَ خبرو وخوات ولاړئ - مګر زموږ په زمانه کښې او تر دے لا هم یو څه د مخه دَ شاعرئ دا زوړ تعریف او دا زوړ مقصدیات سو - اوس هم په شاعرئ کښې دَ عِشق و محبّت خبری کیږی - مګر لهغه لږ لږ او زیاتره خبری داسے کیږی چه دَ هغو تړون دَ انسان دَ ژوند سره دئ. په شاعرئ کښې دَ انسان دَ ژوند په تیر و بیر او شو پتواړخونو باندی خبری کیږی - دَ انسان دَ خوابدئ او دَ خوشحالئ په کارو رسوی - دا نن صبا دَ شاعرئ موضوع دئ -

پخوا هم داسې خلک وو چه هغوي شاعري داسې تعريف کړې ده
چه هغه زموږ د زمانې د تعريف سره ډيره نږدې ده - او س پاتې
سوه دا خبره چه وعظ و نصيحت او مذهبي خبرې د شاعرۍ موضوع
دي - او که نه دي - او که دي نو هغه شاعري چه په هغه کښې مذهبي
خبرې وي - يا وعظ و نصيحت وي - يعنې د اخلاقو خبرې وي -
هغه اوچه او ښه شاعري بلل کيداى سي - په پخوانيو نقادانو د
ادب په لړانو کښې يو افلاطون هم دى - افلاطون دادب مقصد
اخلاق بولي - دى وائي چه ښه ادب هغه دى چه په هغه
کښې د انسان ته ښې لارې و چارې ښې خبرې او ښه خويونه وروښودل
سي - که په ژوره کتنه ورته وګورو - نو دا خبره ښکاره کيږي -
چه مذهب و اخلاق د انسان په ژوند کښې ډير کار لري - او
د انسان د ژوند يو داسې اړخ او يو داسې برخه دي چه په
هيڅ حال کښې وي د هغوي څخه نه سي خلاصولاى -
بيا په زياته کوم سړى چه مسلمان وي نو هغه ته خو مذهب د دُنيا
تر ژوند هم ورته ډير دى - او دى د دنيا پر ژوند باندې ضروري ګڼړى
نو کومه شاعري چه په هغه کښې د دين او مذهب خبرې
وي - هغه هم لويه او چه شاعري ګڼل کيداى او بلل کيداى
سي - ولې چه مذهب هم د انسان د ژوند يو داسې اړخ دى
چه د ده د ژوند څخه نه سي کيداى -

د رحمن بابا د لوئي يو سبب دا هم دى چه د ده په

بیخی ډېرو شعروکښې دَ مذهب خبرې راغلی دی - عام خلک چه دَ عشق په باریکو خبرو نه پوهیږی - دَ رحمٰن بابا شاعری دَ مذهبی خبرو له کبله خوښوی - نو مذهب شعر له جاته موږ و رحمٰن بابا تدلوئ شاعر وُبلائے سُو - لکه دَ مخه چه ما وُوئیل - پخوا دَ شاعری لوئ مطلب او لوئ موضوع دَ عشق و دمینے دَ خبرو دَ حَرَلندول ؤ - نو رحمان بابا هم دَ عشق و دَ محبت سندرې وائی او خپل معشوق که مجازی وی او که حقیقی په رنګ رنګ سره ستائی - دَ مجاز او دَ حقیقت بحث زور بحث دئے - دَ مجازی و دَ حقیقی شعر دَ توپیر معلومول یو بنکاره او تا کلئے چم نشته - بیا هم زیاتره یو سړی چه دَ شعر و شاعری څه شوق لری - او څه ورسره شناخته وی - هغه مجازی و حقیقی شعر سره جلا کولائے سی - خو ډېر داسے شعرونه هم راځی چه هغوته هم حقیقی شعرونه ویلے کیدلائے سی - او هم مجازی شعرونه ورته ویلے کیدائے سی -

حقیقی معنی دا چه په شعر کښے دَ خپل عام او دَ دُنیا دَ معشوق پر ځائے خدائے تعالیٰ را ولی یا رسول الله صلعم را ولی - لاکن خبره دا رنګه وکی چه نورې خبرې تهولے مجازی ورسره وی - او دَ خدائے تعالیٰ او دَ رسول الله صلعم نوم هم بنکاره نه اخلی - بلکه مجازی نوم پرایږدی - او په "یار" و په "اشنائے" په "دلدار" یے بولی - په حقیقی شعر کښے چه دَ شرابو خبرې راسی - دَ هغو څه مطلب خدائے تعالیٰ او دَ خدائے تعالیٰ دَ پیژندګلوئ شراب اخلی - او دَ شرابو نور لوازمات

"پیر مغان" "جام" او ساقی" چه ذکر کړل سي. د دغو څه هم مطلب خدائے تعالیٰ یا رسول الله وي - داسې چه په مجازي توروکښې حقیقي خبرې وکړل سي - پښتو شاعرۍ د فارسي شاعرۍ څه اخستي دي - او مجازي شعر و داته وائي چه په شعر کښې چه د کوم معشوق سره مینه او محبت څرګندول کیږي - دغه دغه زمونږ لیدلي او کتلي - یعنې انسان محبوب وي - د رحمان بابا د شاعرۍ لویه برخه د عشق خبرې وي - د عشق د خبرو د کولو د پاره د شاعرۍ یو قسم تاکلے سوے دے چه هغه ته "غزل" وائي - د رحمن بابا په دیوان کښې هم کړدے غزلې وبولي -

رحمن بابا داسې ډیر شعرونه وئیلي دي چه هم هغه حقیقي دي یعنې د تصوف شعرونه ورته وئیل کیدلائے سي - او لهم مجازي شعرونه ورته ویل کیدلائے سي - د تصوف داسې لنډ تعریف لږ پر مخ وکړ - د تصوف تحریک په اسلام کښې د رسول علیه السلام د اصحابو و د تابعینو او د تبع تابعینو په وخت کښې نه ؤ - بیا وروسته شروع سو - هسې خو په رسول الله صلی الله علیه وسلم کړده ورځ و شپه خدائے یادولو - او صحابو به هم عبادتونه کول هم د ورځې هم د شپې بیا تابعینو او تبع تابعینو هم عبادتونه ډیر ډیر کول - مګر داسې چه پیر دے که مرید دے او د پلانکي سلسلې پیر دے - یا مرید دے - داشیان هغه وخت نه ؤ - تصوف بیا وروسته شروع سو - او دا نوم هم بیا وروسته ورکول سوے دے - بیا د عباسي خلیفه په وخت کښې چه د یونان

فلسفے او د یونانی علوموپه عربی ژبه کښی ترجمے وکړے سوے ۔ نو اسلامی عقائد هم ډیرځنے متأثره سو ۔ او په تصوّف کښے هم یونانی او هندوستانی فلسفه ورګډه سوه او ډیر غیر اسلامی او ناروا شیان په تصوّف کښی ورد ننه سو ۔ د اهل تصوّف او د اهل ظاهر چه علمائے کرام دی ډیری جګړے و قصّے سره سوی دی ۔ د حدیث شریف او د فقهی او د تفسیر په کتابو کښے د تصوّف بحث لنته ۔ د تصوّف د پاره صوفیائے کرامو جلا جلا کتابونه لیکلی دی ۔ علماؤ د افتویٰ ورکړے ده چه دئ ناروا نه دئ ۔ لاکن فرض یا واجب یا سنت هم نه دئ ۔ د تصوّف لوئ او لومړئ مضمون ترک دنیا ۔ یعنی په دنیا کښی زړه نه تړول دی ۔ رحمٰن بابا هم هر ځائے د دنیا غندنه کوی ۔ او د بنده عمل او د آخرت د پاره خلک پاروی ۔ رحمٰن بابا ځنی ځائے "درویش" او فقیر ګڼړی ۔ او د مال و دولت او د باچهی او د شان و شوکت څه ځائے لیری لیری ساتی د درویشانو په لړ کښی دئ وائی ۔

که نظر که څوک په کار د درویشانو
خود به وو ینی وقار د درویشانو
په دغه لار به ورسی خدائ و رسول ته
که څوک یون کوی په لار د درویشانو

په یو قدم ترعرشه پوری رسی
ما لیدلی دئ رفتار د درویشانو

په داپورتني شعر کښې چه دَ عرش در سيدنگ خبره ده - دا غالباً رسول
عليه السّلام بنئے بیا وائي -

چه دنيا ئے کړه دَ خدائے د پاره ترکه
صَد رحمت سه په روزگار دَ درويشانو

رحمان پردے غزله باندے خپل کرد ديوان قربانو
او وا سے وائي -

کرد ديوان دَ رحمان زار تر دے غزل سه
چه بيان ئے کړ کردار دَ درويشانو

دَ دُنيا په غند نه کښې وائي - ؎

هوښيار مه گڼره هوښيار دَ دے دنيا
بے وقوف دے وقوف دار دَ دے دُنيا

بيا وائي - ؎

عاقبت خو به يو مټے سے دَ خاورو
گل عذار و گل رخسار دَ دے دنيا

بيا دَ دنيا دَ خرابوالي څه بنه دليل ورکوي او وائي -

له هر چا به پيغمبر سره وه ډيره
که څه قرب وائے يا وقار دَ دے دُنيا

رحمان بابا له خپر سرئے په دنيا کښې بنه بولي چه دئے دَ خدائ
عبادت وکي نو دئے وائي - ؎

مغو بيا موند سعادت په دا دنيا
چه ئے او کړ عبادت په دا دُنيا

بل ځلئ بیا دنیا په دے بنه بولی چه دا د آخرت توښه ده ـ
اوسړی د آخرت د پاره په دنیا کښی ښه عمل کوے او وائی ـ

ښه د که ښه ده دا دُنیا
چه توښه ده د عقبا

د عشق په تعریف او په خوښه کښے وائی ـ

تر عشق غوره بل څه کار په جهان نشته
تر همه کارونو عنوره کار دی دا

بل ځائے د خپل عشق او د خپل دلبر د لوی والی او ښه والی
بیان کوے ـ دا هم د عشق حقیقی شعر دی ـ

نه به ما غوندے شیدا وی په جهان کښے
نه به تا غوندے دلبر سے بل پیدا

دنیا یو رباط بولی او وائی ـ ے

دا دنیا په احمقانو ده آباده
دانا نه که په دنیا باندے غرض

عشق او خپل ځان د وه سره ترلی شیان بولی او وائی ـ

زهٔ عاشق یم سر و کار می دی له عشقه
نه خلیل نه داود زهٔ یم نه سهمند

د نامتو صوفی منصور په حایت کښے کانیزے او وائی ـ

اورنګ زیب او شاه جهان غوندی اشراف
صدقه سه د منصور غوندے نداف

دَسماع یعنې دَسرود دَاوریدو څه خلک راکوزوي اووائي -

په هغه غوږ وچه حمد وثنا اوري
بیا سماع په هغه غوږ وَدَرباب کړي

بل ځائې دَعشق حقیقي په لړ کښې داسې کائیږي -

عشق عاشق لره یو هسې پیر اُستاد دی
چه به نه وي بل داهسې پیر اُستاد

دَعشق په باره کې رحمٰن بابا بیخي ډیر شعرونه لیکلي دي - دالوړ څو دَعشق حقیقي بیان وُو - اوس زه دَرحمان بابا هغه شعرونه لیکم چه دَ دَعشق مجازي په باره کښې وئیلي دي - خو دا نه ده معلومه چه عشق حقیقي بنئې اوکه عشق مجازي بنئې - هر یو مطلب چه ځنې واخلې هغه سم دئې - زیاتره چه دَعشق خبرې کوي - هغه حقیقي عشق بنئي -

عاشقي دَه خدائې دار دَه پیدا کړې
چه په اور کښې یې وطن وي څه به څوړ که

بل ځائې وائي -

عاشقي یوه پائیه دَه عجائبه
دغه کار کولائې نسي هم بغیر څوک

دَخپلې فقیرۍ او درویشۍ حال دا راز بیانوي -

بادشاهي دَ فقیرانو په ځماسې
زه رحمٰن ځکه بادشاه سوم چه گدا سوم

دَ تصوف په شاعرئ کښې یو قسم لفعه لم دئ چه ښکاره ښکاره خبرې کوی - ود اته ښکاره حقیقت وئیلائے سو - او دَ تصوّف وشاعرئ ته پټ حقیقت وئیلائے سو - پند ونصیحت او وَعظ جلا شی بلل کیږی - رحمان بابا دَ نصیحت ود وَعظ شعرونه بیخې ډیر او تر شمار تیر وئیلی دی - او په ډیر نوی ناولده او زړه کښونکے طریقه سره یې وئیلی دی - چه دَ اخلاقو او دَ نور واسلامی قدرو تلقین اَو ښوونه کوی - نو دئ دَ مثالو څه کار اخلی - او دوه شیان سره راېرمخ کی او بیا داسې چم باندې دَ دوو لیشانو ترموونے ښکاره کوی - چه دَ دُه خبره پرسړی ډیر اَثر کوی - دَ دُنیا دَ فنا کیدو او نه همیشه توب په لړ کښې څه وائی -

که جمشید وُو که بهمن وُو که قباد

که نمرود وُو که فرعون وُو که شدّاد

رسول ئے ترمراده هیڅ څوک نه دئ

همه وارہ پاته سوی دی نامراده

دَ عالمانو بنه والے بیانوی او وائی - ؎

عالمان دی روښنائی دَ دے دُنیا

عالمان دی دَ تمام جهان پیشوا

دَ جاهل ود عالم مثال داسې بیانوی - ؎

جاهلان دی په مثال دَ مړ کانو

عالمان دی په مثال دَ مسیحا

دَ دُنیا غند نه کوی او ډیر عجبه مثال یې بیانوی -

نه يې مخ سته نه يې شا
لکه لوټه د صحرا
و نارينو ته وائي -

د سړو دا نو کار د نفس سره جنګ دی
نه زنان غوندی له نقشه له نکينه
ترڅو عمله سړی نيک عمله ښځه نه بولی او وائي -

ترڅو پاکو نارينه وو ده بهتره
پاک دامنه پرهيزګاره ارتينه
ديندارې و دنياداری ليری ليری اوځلا بولی او وائي -

ديندارې دنياداری ده سره ليری
ما ليدلی هيڅ ديندار د نيادار نه دی
د حرام خور سړی په لړ کښی وائي -

حرام خور د مخنشو په حساب دی
که په توره يا په تيغ وی مړ نی
د احتياج په باره کښی وائي -

احتياج هسی بلا ده په جهان کښی
چه پلار زوی کی زوی زوی لی د پلار پلار
څوک چه د بل عيب ته تل ګوری او ځان يې لعيروی د هغه په لړکی وائي -

چه مدام د بل و عيب ته نظر کړی
خدائی د خپله عيب ولی نا خبر کړی

غافل سپین ږیرے ته واسی ږائی -

دَ ځوانئ عمر دی تیر کړو پَه غفلت کښی

پَه پیرئ کښی به څه ږیره دَ محشر کړے

دَ رحمٰن غوره مضمون او تر ټولو لوئے موضوع دَ عشقِ مجازی دی - لکه د مخه چه ماوئیلی دَ رحمٰن داسی شعرونه هم ډیر شته - چه دَ هغو څه هم سړے حقیقی مَطلب اخستائے سی - او هم مجازی مَطلب ځنی اخستائے سی - مګر دَ دهٔ دَ شاعرئ تر ګردو لوئیه برخه داسی ده - چه سړے پَه پوهیږی - چه دا دَ عشق مجازی خبری دی - پَه عشق کښی پر انسان باندی ډیر رنګه رنګه حالتونه ورځی کله وصل وی او عاشق دَ خپل معشوق سره یو ځائے وی - په مجلس و په خبروئے موړ وی - کله هجروی چه عاشق دَ خپله یاره جلاوی - خاوری پَه سر او دربدره وی - په ژړا او په واویلا وی - کله رقیب ته خواشینی کوی - او بد ورَد ورته وائی - دَ خپل اشنایه څه ېشړی - رحمٰن بابا ټول حالتونه په راز راز او په ډول ډول سره بیان کړی ی دَ عشق یو داسی جذبه ده چه په هر انسان کښی نر وی که ښځه ہر وو ډیر خامخا وی - شاعر پَه خپلو شعر و کښی دَدے جذبے مختلف حالتونه بیانوی - او هر څو چه بیانوی مینه نَه پَه ماتیږی - دَ عشق پَه خبرو نَه مړیږی - دَ لویه ځکه عشق نه منی - دوئے وائی چه عِشق دَ نر و ښځی ترمیان یو وبے ته هوا کیدل دی - او جنسی خواهش دی - مګر دَ عشق جذبه دَ مادی

سره کار نه لري دا يو روحاني شئ دی ـ او د لويديځ ولا له روحانيته څه
ناخبره دی ـ دا خو د ختيځ د خلکو کار دی ـ د دُنيا لمړی شاعر چه تير شوی
دی د هغه نه وخته څه تر دے وخته پورے داسې شاعران بيخي لږ کم راغلي
دی چه د عشق نوم يې نه وی اخستی يا يې د عشق خبره نه يې
کړے ـ

نن صبا داسې ډير شاعران سته چه هغه په شعروکښې
د عشق خبرے کول يو زوړ او بے کاره بولي ـ او د انسان د ژوند خبرے
کوی ـ داسې شاعران ځان ته "ترقي پسنده" شاعران وائی ـ مګر
د دوی شعرونه، نه شعريت لري او نه خوند ـ په غزلوکښې چه
د مينے محبت سرود و نه، نه وکو هغه غزل کائي خوند نه کوی ـ
نن و صبا و هغه شاعر ته لوی شاعر ويلے کيږی ـ چه د ده شعرونه
د خلکو د زمانے د حال سره سم وی ـ مګر ولې چه عشق يوه انساني
جذبه ده ـ او رحمن بابا د دے جذبے څرګندول او بيانول په ډير
نوے او ناولده طريقه سره کړی دی ـ نو ګوا ده هم د انسان سره
اوږده ورلونګ يو شئ په خپلو شعروکښې بيان کړی دی ـ نو دی هم
دا نن صبا پر ازميښت سم نخيږی ـ او د دُنيا په لويو شاعرانو کښې شمار
کيږی ـ حافظ و سعدی دواړه لوی شاعران دی ـ او غالب و اقبال
د اُردو دواړه لوی شاعران دی ـ دا شاعرانو هم په خپلو شعروکښې
د مذهب او اخلاقو خبرے کړی دی ـ د عشق و محبت او د نورو انساني
جذباتو احساساتو خبرے کړی دی ـ او په دغه خبرو سره دوی

دَ دُنیا په لویو شاعرانو کښې حساب کیږی - ورډز ورتهاو شیلې دَ انګریزی ژبې نامتو او پیاوړی شاعران دی - دوی هم دَ اخلاقو او دَ مینې محبت او دَ انسانی جذباتو خبری کړی دی - دوی هم دَ دنیا په لویو شاعرانو کښې ځائے لری - دغه رنګه امراوٴالقیس و زهیر او متنبّی و معرّی دَ عرب ژبې مشهور ه او اوچت شاعران دی - دوی دَ عشق و محبّت دَ اخلاقو او دَ نورو انسانی جذباتو بیان په خپلو شعرو کښې کړی دی دوی هم دَ دُنیا دَ لویو شاعرانو په ټولی کښې ورګډ دی - دَ عشق و محبّت په لړکښې رحمٰن بابا وائی -

عاشق چه مې دَ خلقو په غلا غلا کړه
هغه غلامې په تمام جهان رسوا شوه

دَ تورو زلفو بیان داسې کوی -

هیڅوک مه شه ګرفتار دَ تورو زلفو
مه اسیر شه په کفار دَ تورو زلفو
څوئے صبح قیامت دَ میده نه شی
ورځ به نه شی شب تار دَ تورو زلفو

بل ځائے دَ عشق بیان داسې کوی -

زه داهسې دیوانه او مجنون نه چا کړم
له رواجه نه رسومه بیرون چا کړم

بل ځائے وائی - مخ دیار شمس و قمر دَرے واړه یو دی
قد دَ سرو صنوبر دَرے واړه یو دی

بل ځائے داسې وائي۔

ستا دَ زلفو د رخساره دَ سرو شونډو
پیدا سوې شام شفق او صبحدم دئ

بل ځائے وائي ـ

چه شهید دَ تورو ستر کو په خنجر سي
خوشنود به دَ سرو شونډو په کوثر سي

بل ځائے وخپل یار ته وائی ـ

دَ طوبي دوني سیوري مې خوښ نه دئ
ستا مخ په لمبو سوې کباب خوښ یم

دوصال و دهجران بیان داسې کوي ـ

چه دې وصل و هجران وته نظر کړم
زړه ګمان کړم جنت دادئ سقر دادئ

دَ هجران په لړ کښې کړ دئ ـ

که څه وایم دَ هجرانه وایم څه
دَ دې درد دئ بې درمانه وایم څه

بل ځائے وائي۔

د یر عمونه شوخ شوخ سته دې په دنیا کښې
ولې نه لکه هجران داسې شوخ

دَ شیخ او دَ زاهد په لړ کښې وائي۔ ـ شیخ و زاهدان چه نصیحت کوي وما ته
نه دي خبر سوي ستا دَ مخ له حسناته

د رقیب په لړکښې داسې کائیږي -

دَاغیار سره خندا شته پکار نه ده

هم له ده سره سوداشته پکار نه ده

د رحمن بابا په شاعرۍ کښې د داسې شعرو هم کمبوت نشته چه په هغو کښې دَ تخیّل لوړ والے او ژور والے وي - او دَ عام انساني جزباتو و احساساتو او دَ هغې ورځې کتنې یعنې روزمره مشاهدې او تجربې سره اړه لري - دغه رنګه شعرونه دي چه یو شاعر لوئ شاعر کوي - په دغه رنګه شعرو کښې داسې خبرې په نوې او ښکلې طریقه سره بیانیږي - کومې چه په هر چا کښې وي - او کومې چه هر څوک یې خوښوي غالب په دغه سبب دومره نو میالے سو - چه دَ دهٔ په شعرو کښې دَ تخیّل لوړوالے نه او اشعار یې دَ هر چا دَ طبیعت سره اړه درلونکي دي - دا رنګه شعرونه چه دَ هر شاعر په کلام کښې هر څوني وي دغوني هغه شاعر لوئ بلل کیږي - رحمن بابا دَ جاهل حاجي په لړکښې وائي -

دَمکې په بزرګۍ کښې هیڅ شک نشته

ولې خر به حاجي نسي په طواف

بیا دَ دروغجنې مثال داسې پر نوې ڇ بیانوي -

دَ کاذب ژبه په خوله کښې وچه بنه ده

لکه توره دَ لرګي وي بې غلاف

دَ حُسن بیان داسې کوي ۵ دراز قد دراز مژګان درازې زلفې

ورې شونډې وړه خوله واړه غابښونه

بل ځائے وائي -

زنخدان يې رب كړو سى كر

ورښو ئيږم په هر كام

بل ځائے ښكله نوے خبره كوى -

په دُعا دَ رب غواړم

دَ خپل يار دَ خولے دُشنام

دا ښكله بنه مثال بيانوى -

بے ژړا چاتہ نه كورے سياه چشمه

دَ نرګسو غوړيده دَ جوئے په نم دى

بل ځائے دَ لاله دَ شنه كيدو داسے حسن تعليل كوى -

هره اور دَ عاشقئ په زړه كښے پوسى

چه لاله يې له تربته د ميده سى

دَ يار دَ غم بيانے داسے كوى -

دَ يار غم مې لكه تاج دے په سر ايښے

نور همه غمونه لاندے مې تر پښو دى

دَ رحمٰن بابا په شاعرئ كښے يوه خاصه خبره دا ده چه

دے دَ "تركو" بيان ډير كوى - ولې چه تركيانے ډير ښائيسته وښكلى وُو.

نو له دے دجے دَ خوبانو د پاره دَ تركو نوم شروع سو - حافظ شيرازى

لهم وائي - ؎ اگر آن ترک شیرازی بدست آرد دل مارا

بخال هندویش بخشم سمرقند و بخارا را

رحمان وائي -

په ژېړ رنګ په سپينو اوښکو به ما بيا مومند
که د ترکو ملاقات په سيم و زر وائي

رحمٰن بابا په خپله شاعرۍ کې تر ټولو شاعرانو زيات د ترک دنيا او د مرګ خبرې ډيرې کړې دي د مرګ خبرې دوئ د دے دپاره ډيرې کوي چه خلک عبرت واخلي - او د آخرت په زيرمه پسے سي - د مرګ په باره کښې وائي -

خان سلطان د دے جهان
آخر د روي خوار حيران

بل ځاے وائي -

خدايه څه سوهند ښکلي ښکلي خلق
په ظاهر په باطن سپين سپيڅلي خلق

رحمٰن سپين ږيرو ته نصيحت کوي - د سپين ږيرو بيان دے ډير کوي - د رحمٰن بابا په شاعرۍ کښې تلميحات بيخي ډير دي او د هر شاعر تر کلام ډير دي د خپلې زمانې د خلکو نومونه يې هم اخستي دي - لکه شاه جهان اورنګ زيب، خوشحال خټک، خان جمال خان، عزيز خان او ده په تلميحاتو کښې د نبيانو او د نورو اصحابو او بزرګانو دير نومونه يې په خپلو شعرو کښې راوستلي دي. لکه حسن رض و حسين رض، موسیٰ عليه السلام ابراهيم عليه السلام - خضر عليه السلام - يوسف عليه السلام ابراهيم ادهم او نور په ګمراهانو کښې يې د فرعون و د نمرود و شداد او د نورو نومونه اخستي

دے په باچاهانو کښے د دارا او د سکندر - د جمشید د قباد او په عاشقانو کښے یې د مجنون د شیرینې د فرهاد - د لیلی او د نور و نو مونه اخستی دی - د رحمن بابا په کلام کښے د تاریخ و دا جغرافیې ډیرے خبرے راغې - چه د هغو څخه دا معلومیږی چه دی ډیر پوهه او عالم سړے وو - رحمن بابا خپل دیوان ردیف وار لیکلے دے - چه ډیر په ښو بنیارے سره ے لیکلے دے - د رحمن تشبیهات او استعارات هم ډیر عجیبه دی - دے وائی.

دغه یار دے د اغیار

دغه گل دے دغه خار

د رحمن په شعر و کښے مسخرے و ملامتول او پیغور ورکول یعنی طنز و مزاح هم ښه ډیر سته - رحمن په پښتو او په اردو په فارسی کښے یوه غزل یعنی سه آتشه جوړه کړے ده - چه اول شعر ے دا دے -

بوصل تو مارا کجا ها تھے ہے

که وصل تو خیلے بڑی بات ہے

ز آغوش رحمن رویا رقیب

کہ ایں شعلہ بدخوئی و بدذات ہے

د رحمن بابا په شعر کښے سوز و گداز ډیر دے - دے وائی -

د رحمن و سوزانه شعر ته حیران یم

چه ئے او ور کړی نه دی پرجهانه

د دے لحاظه څه دی - د اردو شاعری میر تقی میر دے - دغسی رحمن و شیخ سعدی ته ډیر سوی دے - د دوار و په شاعری کښے د وعظ

ونصیحت او دَ عشق حقیقی بیان شته - او دَ عشق مجازی بیان هم شته
دغسی چه ورته کوری دَ رحمٰن دَ کلام لوئ لوئ خصوصیات سوز وگداز
اظهار عشق و محبّت اَو لوړ تخیل دئ - رحمٰن بابا په خپلو شعر وکښی زیاتره
دَ پښتو ژبی خپل توری وترکیبونه راوستلی دی - دَ فارسی توری
وترکیبونه ئې هم راوستلی دی - دَ رحمٰن بابا اکثره کلام په یو بحر کښی دئ
چه دوُولس سیلابه دئ ـ او دَ پښتو شاعرئ تاکلئ او مخصوص بحر دئ
له دے ماسوا نور په لنډو او اوږدو بحر وکښی ئې هم غزلی وئیلی دی -

دوُولس سیلابه ئې یوه مصرع وی او دوا ړی څلیر ویشت سیلابه وی -

چاپ سوئ میاشتیزه اولس "پښتو" کوټه

فروری ۱۹۶۹ ع

# دَ پښتو موجوده شاعران

پښتو ډيره پخوانۍ ژبه ده دَدې دَ خلقو پردې باندې اِتفاق دۍ چه دَ پښتو سلسله حضرت سليمان عليه السلام څخه راشروع سويده له هغه وخته څخه تردې وخته پورې په هره زمانه کښې په پښتو کښې هر قسم شاعران پيدا سوي دي - بعضې دَ مغوشه لوئ لوئ بزرګان او وليان او بعضې دَ آزادۍ دَ تحريک رهنمايان ؤو- ډير کلونه په خالصه پښتو کښې شاعري کيدله - لاکن نن ورځ په پښتو کښې دَ فارسي او عربي تورې هم اِستعماليږي -

دَ موجوده پښتو شاعرۍ دوه خاص شيان دي - اول خو دا چه په پښتو غزلو کښې عنوان يا دَ سرتوري نشته - لکه په نورو ژبو کښې چه وي - دويم دا چه پښتو غزلې کسرلري - دا کسر اولې دوې مصرعې وي - يا اول دوه بند ونه وي - زياتره له کسره څخه دَ غزلې مطلب يا مضمون معلوميږي کو يا دا کسر دَ عنوان کار کوي -

زهٔ په دے مضمون کښې د موجوده پښتو شاعرانو یو څو حال بیانوم او د دوئ د شاعرئ نمونے هم وړاندے کوم۔

په موجوده شاعرانو کښے اوّل نوم د محمد عیسٰی دے۔ د دهٔ ډیر لوئ دیوان هم شته۔ دے په قندهار کښے اوسی۔ اوس نو زوړ دے۔ د دهٔ د دوو غزلو کسرونه زهٔ دلته لیکم۔

ولاړ ئے غمخور د اِسلام ژړیږے کور د اِسلام

وختے زور د اِسلام

چه جاے قطک پیشوا خود به مومنان ژاړی

تول جهان ژاړے

په احتیاج دے د دیدن یمه

بے پروا د انجمن یمه

دوئم نوم د عبدالعزیز اوّل دے۔ دے هم په قندهار کښے اوسی۔ ډیر لوئ شاعر دے۔ د ډیرے شاعرئ څخه اوس سودائی دے۔ دے هم اوس زوړ دے۔ دا دوه کسرونه د ده دی۔

زبه ته مو نصیب کے جانانه هو زړه مو سوځی په اور د هجرانه هو

تا سره په پلنګ زړه می تا څه ازار دے مړاوړه لاسونه

دریم نوم د عبدالعزیز ثانی دے۔ دے زیاتره د پښین په علاقه کښے اوسی۔ د دهٔ غزلی څو کاله د مخه ډیرے ویلے کیدلے دا یو کسر او دوه آخرے بندونه د دهٔ دا دی۔

ولاړ ئے تازه ګل د بوستان حکم پر او سو د سبحان تول عالم پسے ژړیږی

نن موتر ستړګو خونے بهیږی

(۲) چه یو کلام دَ یار دَ خولے راوړی　　دَ میخانے راوړی

(۳) عبدالعزیز ثانی هردم ستا امید وار دے　　جانانه څه سپین دی رخسار دے

(۴) نوم دَ عبدالحکیم دے - دے هم دَ قندهار شاعر دے - دا یوه غزله یے مشهوره ده -

اعلیحضرت می شهنشاه بادشاه کابل له راځی
دَ کفر ملک ته مردانه شاه دَ کابل راځی

(۵) نوم دَ عبدالکریم دے - عبدالکریم قندهاری دے - دَ ده اکثره غزلی او شعرونه دَ نورالمشائخ حضرت شور بازار په منقبت کښی دی - دَ حضرت او دَ حضرت له کورنی سره دَ ده خاص عقیدت دے - دا یوه غزله یو کال دَ مخه ډیره وئیلے کیده -

شیر آغا جانه رخسار دے گل دے
آفندی جان آغا مدام دَ دیے بلبل دے

(۶) نوم دَ عبدالغفار دے - دے په پېښور کښی طالبی کوی - دا غزله ډیره وئیلے کیږی -

مرحبا خونریزی من　شاهِ خسرو بنگالے　داداغ پر ضمیر ساتم
کعبه یک تنها والے

(۷) نوم دَ محمدؐ رسول دے - محمدؐ رسول په کوټه کښی اوسی - ځوان سړے دے ډیری غزلی یے مشهوری دی - دا دوه غزلی هم دَ ده دی -

(۱) ورځ دَ اختر ده نن میلو له ځوانان راځی　؛　واړه خوبرویان راځی

(۲) فضل وکے خدایه، بد موعملونه، باران را باندی لنت، زلزلے را باندی کیږی
کوته مو غرقیږی

(۸) نوم دَ علاؤالدّین دی - علاؤالدین په لاجور دَ گلستان
کښے اوسی - عمر یُ لږ دی - دَ دوؤ غزلو کسرونه یُ دادی -

(۱) مطلب می دی ستا لبے مکړه غضب اے جانَ من سلطان دَ انجمن
(۲) یُ اشرف الانبیا دوست دَ الله خیرالوری

(۹) نوم دَ عصمت الله دی - عصمت الله دَ پښینے باشنده دی -
دَ دهٔ غزلی تر کراچی او تر قندهاره هم رسیدلی دی - اوس
ځوان دی - دادوے غزلی دَ دهٔ دی -

(۱) خود به وی ارمان دَ هر مُسلمان
وینے په خپلو سترگو دینی تر بهیږی
کله موزره کیږی -

(۲) چِرَ بر سوخالی پاتے سود امان دَ مرګی
دَ غفار تم شروع پر درست جهان دَ مرګی
عصمت الله زما ورور دی

(۱۰) نوم دَ ضیاءالدّین دی - دی دَ علاؤالدّین مشر ورور او دَ لاجور
باشنده دی - ځوان سړی دی - دایوهٔ غزله یُ ډیره مشهوره ده -
قاصد راغی واحد وائی زاهد غوښتے
گلشن ته یار راسه انجمن سته

(۱۱) نوم دَ عبدالغفور دی دَ دهٔ کور په منزکی کښے دی - دی هم

اوس ځوان دے دا غزله یې مشهوره ده۔

ګلابي ستر ګې دې او برڼې سره اشنایه
ته به تر څو تر څو کره ځې خود رائیه

ورځه ورځه ورځه ورک سه ملعونه

د دے غزلې دویم بند که چیرې غلط وي معافي غواړم۔

(۱۲) نوم د عبدالاحد دی۔ دی هم ځوان دی۔ دا غزله یې مشهوره
ده۔ ۵ چه خوله یې پر سر دا رنګین دی دچا
زلفان یې ماران لب شیرین دی دچا

یوه داده۔

تر څو به لاړ ونده یې عمر به دی جاودان
غم و نخوره د ایمان

(۱۳) نوم د جمعه خان دی۔ دی په بوری کښې طالب دی۔ دا
غزله یې مشهوره ده۔

په تورا ور بل کښې دې ګل ایښی د مجاز دی
وو دلې مور در ته په ناز دی

د بنتو شاعرې یو دا خصوصیت هم دی چه شاعر
تخلص نه لري۔ اکثره شاعران خپل پوره نوم ککښې اچوي۔
دا هغه شاعران دي چه اوس ژوندي دي۔ او
مالیدلي دي۔ یاره یې پیرزه مضمونه څه دا معلومیږي چه عموماً

دَ شاعرانو دوه ډلې دي - یوهٔ دَ قندهاریانو ډله ده - او یوهٔ دَ پښنګیانو ډله ده -

چاپ سوئ کالیز "بولان" گورنمنټ کالج کوټه

۵۷-۱۹۵۶ع

# دَ بلوچستان لرغونی او پیاوړی پښتانه لیکوال!

چه دَ بلوچستان دَ پښتنو وشمیر ته وکورے چه څلور بنځه لکه دی۔ او چه ودے ته وګورے چه داغریځه یمه دَ ننئے اونوی تهذیب دَ مرکزو څه لیرے او دَ نوی تعلیم په ډکر کښے دَ نړئ والو په مخ کښے ډیره شاته پاته او لهسی هم یوه پاته اونتلے یمه ده۔ په دے یمه کښے دَ پښتو ژبے پالونکی او پښتو اَدب روزونکی او پرمخ بیونکی بنه ډیر تیر سوی دی او چه دَ پښتو ژبے دَ دفتری او تعلیمی نه کیدو او دَ څه حکومت یا خلکو دَ مالی سرپرستئ او مرستی دَ نیستئ و نحواته مو پام سی نو دا شمیر دَ حد دَ پاسه او تر حد تیر راته ښکاره کیږی۔

دَ پښتنو دَ سپیڅلی او غښتلی اولوئ میړه قیس عبد الرشید سنه ۴۰ھ دَ نحولے څه کالے یا متلے یا نظم و نثر و موږ ته نه دئ معلوم۔ ولے چه له بده مرغه که ویوه خوا ته زموږ پښتانه و روڼه بے زده کړے (بے تعلیمه) راغلی دی خو ولے خوا ته بے زیرمے او

بے باکه وبے درکه راتیر سوی دی - یوار زموږ لمړۍ او اولنۍ تاریخ په تیاره
کښې دی - بیا چه څه دی هغه د ب د خولے او د ب د قلم د څوکې ،
عجبه خو دا ده چه تر شپږمې پېړۍ پورې د هجرې سنې تاریخ پوهانو
چه زیاتره عرب ؤو، پښتانه ایرانیان بل او د دوی خپل قامی یا څانته
وجود وچاته نه ؤو معلوم، خیر خو د ستر بابا عبدالرشید چه د کسے
د غره پړا وچت څوکه بنخ او د تل په خوب بیده دی - له دهٔ را په دے
خوا د دهٔ بناغلو لمسیانو څه نه څه خپله مورنۍ ژبه نهالوله او یو مخ ئې
نه هیر وُله یا شاته کړله - که یوه خواته بیټ نیکهٔ خپلے د سو ز ه
ډک او د کلک خلوص مناجات په خپله خوږه ژبه کښې پورته کړی
دی - نو بله خواته شیخ اسماعیل کښې په خپل تربوره خرشبون پسے
له غمه ډکی او د بیلتانه کلکی نارے وهلی دی - که چیرے ویوه
پلوته خرشبون بابا خپل تاثرات په مورنۍ ژبه کښې څرګند کړی
دی - نو وبل پلوته ملکیار غرشین د هندوستان په یوه غزا کښې موږ
وینو چه د شهاب الدین غوری غوندی ستر پښتانه غازی په لښکر
کښې د زړه له کومی او په مذهبی جذبه لړلی نارے وهی او د پښتنو
غازیانو وینے په جوش راولی - او تو دوی یې - او د شهاب پر ملګرتیا
او غزایې یاد وی دغه رنګه موږ ګورو چه د کاک نیکه زوئ شیخ تیمن
هم خپل فکر واحساس په خپله سپیڅلی پښتو کښې څرګند وی -
دا نو موړی تهول د بلوچستان د کسے د غره د کوه سلیمان د سیمی او سیدو
تیر سوی دی - خو بیا ورسته څنی کوچیدلی او لیږد یدلی دی -

په پښتو نخواکښې چه څو مره لرغونې پښتانه لیکوال تیر شوي دي. دغو لويه برخه د بلوچستان د کسې غره (د قیس عبدالرشید په مناسبت سره) کوه سلیمان، د سیمې اوسیدونکي دي. ولې چه دا د پښتنو لرې تاتوبې. لرې ځانګوا ولرې روزنتون دئ. د دوئ ماسیوا د افغانستان په سیمه کښې لوئې پیر نامتو ولي قطب الدین بختیار کاکي (مړسوئ ۶۳۳ ه) چه بیا ورسته د دهلي د غلام باچا شمس الدین التتمش په وخت کښې په هندوستان کښې وفات سوئ دئ. په پښتو کښې يې چه اشعار وئیلي دي لفغه دا دي.

ویری زړه سوری سوری کړ
راته وګوره ملوکې
په بیلتون کې دې وباسم
له خوږ منه زړګي کوکې

راته وګوره ملوکې
راته وګوره ملوکې

امیر کروړ سوري چه د بالشتان اوسیدونکې او د امیر پولاد زوئ وو. دا رنګه په زور او شور خیل جذبات څرګند کړي دي.

زه یم زمری د دے نړۍ د ما اتل لنته
پر هند و سند و بخارا و پر کابل لنته

بل پېر زابل نسته

له ما اتل لنسته!

شیخ اسعد سوری (مړسوئ ۴۲۵ ھ په بغنین کې) د امیر محمد
سوري ویرنه (مرثیه) چه محمود غزنوي وژلئ وُو- په ډېر سوز او
افسوز و وایئ ته رسولې ده چه سړئ دا رنګه دئ-

چه له برئ زمری رپې ځنګلو کې
له اوکوبه یئ ډاری تبر و جبار
په ویر ژلیو لور نه کړې په زره کړاریه
پر شلیو او روی د غم ناتار
پر سوریو باندې ویر پریوُوت له پاسه
محمد والګئ چه ولاړئ په بل دار

ښکارندوئ د احمد زوئ د فیروزکو- چه د محمد غوري د
وخت سړئ وُو- د دې باچا ستائنه مرح داسې کوي-

لکه ناوې چه سور تیک په تندي وکا
هسې وکانړل غاټولو سره لېسولونه
نمر پلو رونړې والې باندې خاندي
له خوښیه سروهې په سڼګرونه
د شنسب د کهاله ختلئ لمر دئ
د لېسر لې په دود روان له ده غونه

هوتک بابا چه د غلجي قام نامتو ښې هوتکو نیکه دئ داسې

په پښتوکښې ازانګه پورته کوی۔

ترنګ بهیږی ترنګ بهیږی

شیخ متی کلات باباوایئ ــ

جنږی زرغونے که په بیدیا دئ

د بربلږ خواته په خندا دئ

ترنګ چه خوږئ په ژړا دئ

داښتول اغیز د مینے ستادئ

د ملی مشر خپلواکئ ګټونکی او تکړه پښتانه میرویس خان هوتک لور بی بی زینبی د خپل ورور او د ایران و د افغانستان د باچا شاه محمود مرثیه داسے پورته کړے ده۔

دا رونږ جهان راته تورتم دئ نا

زړه د بلیتون په تیغ کرم دئ نا

هوتک غمجن په دے ماتم دئ نا

د باچئ تاج موبرهم دئ نا

چه شاه محمود تیر له دنیا سونا

قندهار واړه په ژړا سونا

موږ په پښتوکښے لرغونی او پخوانی کتابونه هم لرو چه ځوک په هغوکښې پرمخ ورک دی ۔ اوپیواځے نوم یے په نورو کتابوکښے موندل کیږی ــ ځوک یوڅه پاته دے او نور ورک دی خود اکتابونه د بلوچستان په سیمه کښے نه دی لیکل سوی۔ د

افغانستان په سیمه کښې لیکل سوی دی ـ یوځه دَ پیښور په سیمه کښې لیکل سوی دی ـ هاے یو کتاب چه زوړ دئ او په بلوچستان کښې کښې لیکل سوئ دئ ـ هغه دَ دوست محمد کاکړ "غرغښت نامه" ده ـ دَ پښتو دوه کتابونه چه دَ لرغونتوب له حیثه دَ خرکند مقام خښتن دئ ـ "لرغونی پښتانه" دَ شیخ کټه متیزي "او تاریخ سوی دی" چه اوس نه مونده کیږي ـ او دَ زمانے ساړه و تاوده دَ مخکی له مخه ځه واسے ورک کړي دی ـ چه اوس یې نوم و نښانے هم نشته ـ بل لرغونی او زاړه او دَ ویاړ وړ کتاب چه په پښتو کښې لیکل سوی دئ ـ دَ سلیمان ماکو "تذکرة الاولیاء" دئ چه په ۶۱۲ ھ کښې لیکل سوئ دئ په دے کتاب کښې دَ پښتنو دَ لرغونو نیکه گانو چه زیاتره ولیانے و بزرگانے هم وُو ـ حال لیکل سوئ دئ ـ خو دا کتاب هم مانده دئ پوره نه دئ ـ خو بیا هم غنیمت دئ ـ تر ټولو زوړ کتاب چه اوس یې هیڅ درک نشته دَ ابو محمد هاشم "دَ رسالو ونه" دئ چه دَ عربي اشعار دَ فصاحت و بلاغت بیانے یې په پښتو کښې کړئ وُو ـ ابو محمد هاشم په دریمه پیړئ هجري کښے تیر شوئ دئ ـ په دے کتابو کښے تر ټولو کټورا و خوندور دَ لرغونتوب دَ حیثه یوځه کړ دَ محمد هوتک لیکلئ "پټه خزانه" دئ چه دَ ۱۱۴۲ ھ تالیف دئ ـ محمد هوتک دَ "لرغونی پښتانه" او تاریخ سوری دَ محمد بن علی څخه دَ پښتو شرانو او نیکه گانو حالات و خیالات لیکلی دی ـ خو اوس دا دوه کتابونه ورک دی.

داهغه کتاب دئ چه دَبلوچستان دَلرغونو پښتنو دَپاره زموږ ماخذ دی - داکتاب دَ پښتو ټولنې له خوا څه ستر لتهونکی او پلټونکی عبدالحئ حبیبی صاحب کاکړ دَ خپلې دیباچې او تحقیق سره چاپ کړئ دئ - دَدے ماسیوا دَ پینبور په سیمه کښې دَ شیخ ملی دفتر ۸۲۰ھ زوړ پښتو کتاب دئ - شیخ ملی دَ ۸۰۰ھ په شاوخوا کښې په سوات کښې تیر سوئ دئ - دَدهٔ په باب خوشحال ختک داسې وینا کوی په سوات کښې دئ دوهٔ څیزه که خفی دی که جلی -

منحزن دَ درویزه دئ بل دفتر دَ شیخ ملی

دَخوشحال ۱۶۱۳ع تا ۱۶۸۹ع پښتو دیوان او دَرحمٰن بابا دیوان هم دَ پښتو په لرغونی ادب کښې راځې چه دَ پینبور په سیمه کښې لیکل سوی دی - اوس به زهٔ یو وار دَ بلوچستان دَ لرغونو لیکوالو حال ولیکم - او بیا به که خیر وُو دَ پیاوړو لیکوالو حال راوړم -

**لرغونی لیکوال** :- (۱) شیخ بیټ یا بیټ نیکه - دا دَقیس عبدالرشید دریم زوئ او دَ پښتنو یوے پښنې بیټنو جدا مجد دئ - دئ دَکسے په غره کښې اوسیدئ - دَدهٔ دَ ژوند وخت د ۳۰۰ھ او ۴۰۰ھ ترمیان تاکل کیږی - دئ دَ پخوانیو غوریانو دَ زمانې (همعصر) دئ چاچه ترغزنویانو مخه باچهی کوله - سلیمان ماکو په خپل کتاب "تذکرة الاولیاء" کښې چه دَ سرپانڼې ئې سته او نوری ورکی دی - لیکی چه شیخ بیټنی یو نیک سړئ وُو - او بزرګ وُو - دَکسے په

غره باندې به اوسیده - ټوله شپه به د خدائ په عبادت بوخت وُو.
او دا مناجات به یې په ډیره زارۍ وائیه -

لویه خدایه لویه خدایه
ستا په مینه په هر ځایه
غرونه دي د زناورو
ټوله ژوي په زارۍ کي
دلته دي د غرو لمني
زمونږ کرنه دي پکښي پلني
داوکړي ډیر کے خدایه
لویه خدایه لویه خدایه
دلته لږ زمونږ اوربل دئ
وُور کوڅې دئ وُور بور جل دئ
مینه ستا که مونږ میشته یو
د بل چا په مله تله نه یو
هسک او مځکه نغښته ستا ده
د میړوو ده له ستا ده
دا پالنه ستا ده خدایه
لویه خدایه لویه خدایه

د بیت نیکه دوه زامن وُو - چه نومونه یې کچینۍ ورشبون
او اسماعیل وُو - یوه یې لور وه چه بی بی متو نومیده - اسماعیل

خیل اکاسربنړ ورسره بوتلۍ اولوئ یې کړ - چه اوس یې له دغه جانه اسمٰعیل سربنړ بولی - بی بی متویې وشاه حسین سوری ته ورکړه - چه بیا د یرقبائل د دې دپښته څخه پیدا سو - چه وهغوته غلجی یا متوزی قبائل وائی -

سلیمان ماکو وائی چه د بیټ نیکه ورونړه او زامن د کسې په غره کښې اوسیدل - چه اوس یې د سلیمان غر بولی - د بیټ نیکه د مرګ نیټه او مزار بنه نه دی معلوم - مګر د ننګرهار په تورغره کښې د بیټ بابا په نامه یو زیارت سته کمان داری چه دا به د هغه بیټ بابا وی - خوږه داوایم چه د دُه د لوئ ښتنې د ستائنې (حمد) او غوښتنې دعاء تحفه خو دا معلومیږي چه بیټ نیکه د کسې په غره کښې زوړ سوئ او مړ سوئ او دلته ښخ سوئ دی - بې دا چه هغه بیټ نیکه چه د کسې غره مانده وراده او غرونه ورغونه وهره باندی کړاته وُو - هغه څنګه په سپین ږیرتابه کی د ننګرهار غوندی لیری یمې سفر اوکړ -

۲ - اسماعیل سربنړ رح :- دا د بیټ نیکه زوئ دئ خو د خیل اکاسربن په کورکښې د روزید و اولوئید وله کبله دئ په سربنړ مشهوره سو - اسماعیل د ۴۰۰ هـ په شا و خوا کښې ژوند کاوه - دئ هم د خپل پلار غوندی یو لوئ بزرګ ، عارف ستر ستانه او د پښتو ژبې بنه خوږ شاعر وُو - د دُه یو شعر سلیمان ماکو په خپله تذکره کښې راوړئ دئ - یوه بله خوږه نارهٔ یې

په "پټه خزانه" کښې راغلي دي. دانا ره يا شعري هغه وخت ويلي دي چه کوم وخت چه د ده د اکا زوئ خرښبون د ده څخه جلا کيدي او غوري مرغي له تللي د هغه نارې يو ښو بيته دا دي.

که يون دي يون دي مخ کښې بيلتون دي
له کسې عمره څه خي خرښبون دي
که ورو ره ورو ره خرښبونه ورو ره
ته چه بيلتون کړې زما ويرته کوره
د خدائے دپاره خرښبونه ياره
چه هير مونکړې زمونږ کهول واره
زړه مې ريږيږي يار مې بيليږي
بيلتون يې اور دي ځان پرې سوځيږي

**۳- خرښبون:** خرښبون د قيس عبدالرشيدؒ د مشر زوئ سړبن يا شرخبن مشر زوئ دي - د ده اصل نوم خيرالدين دي - خو دي د خرښبون په نامه مشهوره دي. د ده ورور شرف الدين وو چه د شرخبون يا شرخبون په نامه ياديږي - "پټه خزانه" د پخوانيو تاريخو په حواله ليکي چه دي په **۴۱۱** ه کښې په مرغه کښې مړ سوئ دي - د پټې خزانې ليکونکي وائي چه خرښبون بابا په کال **۳۰۵** ه کښې زيږيد لي وو - اوس دا نه ده معلومه چه دا "مرغه" يا غوره مرغه" هغه "غور" دي چيرې چه لمړيو او دو ځوغړيو

پرله پسې نه او، او وه سوه کاله د مخه حکومت ږغولۍ وُو۔ او که د ساخر غور ځن مراد دی۔ نور زیارت خیال دادی چه دا به د جبال غور (غوره) سیه وی۔ یوه "مرغه" د ژوب په ضلع کښې هم سته چه سنځر خیلے کاکړان کښې میشته دی۔ خو دلته یواځې د سنځر نیکه زیارت سته۔ د بل چا د زیارت نخښه نه مونده کیږی۔

ز موږ د الوړ نیکه هم د پښتو یو ښه شاعر وُو۔ تل به یې د خدای عبادت کاوه۔ کوم وخت چه دی د اسماعیل څخه جلا کیدی یعنی د کسے غره څخه "غوږ مرغې" ته تلی نو د اسماعیل د شعر په جواب کښې د مربع (څلوریځ) په ډول کښې یو خوږ اوله سوزه ډک شعر وُوایه۔ د نه شعر په پټه خزانه کښې راغلی دی چه د سر بندیې دا دی۔

بیلتانه ناره مے وسوه په کور باندې
نه پوهیږم چه به څه وی پیښ په ورانډې
له خپلوانو به بیلیږم په سرو سترګو
د واړه سترګی مې په وینو دی ژړاندې

دا څلوریځ اشعار د پښتو به خپل پخوانی رواجی او غاص بحر کښې ۳ دے۔ چه د پښتو شاعری ویره لویه برخه به دغه بحر یا وزن کښې ده۔ دا سمدلاسه شاعری یا نارے د پخوانیو پښتنو خصوصیت دی۔ به پښتو ر دسانو (نقلو) کښې هم میږنے و مینه دا سے نارے یو پربل سره کوی۔

۴۔ **ملکیار غرشین:**۔ د ملکیار غرشینی په باب تاریخونه

وتذکرے خاموشه دی - چه دَ کم ځائے وُو - خیرخو دا څرگنده ده چه دَ محمّد غوری دَ زمانے وُو - قیاس دا

وائی چه دَ بلوچستان دَ سیمے وُو - او دَ لوئی غازی محمّد غوری سره یئے دَ هند په یوه غزا کښے کړوں کړے وُو - دَ دهٔ دَ نامه سره دَ غرشین توری دَ شنه غره سره اړه درلوُونکے معلومیږی - دَ فورټ سنډیمن دَ ښار څخه اتلس میله دَ ختیځ قطب و خواته یو اته زره (۸۰۰۰) فټه جگ غرونے - چه دَ جنغوزیو په درختو او نورو نو تک شین او دَ سیل ځائے دے - پر دا غره سادات هستوگنه کوی - چه "حریف آل" یا عارف آل" ځانته وائی - کیدائے سی - چه ملکیار دَ دغه غره او سیدونکے سوئے وی - دَ دے ماسیوا "غرشینانے" سیدانے هم سته چه دَ پښین دَ ښار په شنهوه دَ لویدیځ وارخ ته دَ "غرشینانو" سیّدانو یو کلئے هم سته - په بارکهان او رماړه شم او دکی کښے هم غرشینانے سیدانے سته چه ډیره والی ربه وائی - کیدائے سی چه ملکیار غرشین سیّد وی - "غرشینانے" یئے په دے بولے چه نیکه یئے (په دعاء یا کرامت) غر را شین کړے وُو - کیدائے سی چه دا هغه "شین غر" دئے چه مائے لوړ بیان وکړ - دَ دے ماسیوا دَ پښین په تحصیل کښے "شین غری" سادات هم دوه کلے سته چه دا هم دَ شنه غره سره اړه درلوُونکے معلومیږی -

دَ پښتنو پخوانیو موُرخینو ملکیار دولیانو په ډله کښے ذکر کړے دئے - دوئے وائی چه غرشین دَ پښتنو یو مشهوره

ستانه قوم دی - ملکیار له دغه قوم څخه یو بزرګ سړی وو - دی د پښتو شاعر وو - سلیمان ماکو لیکلی دی چه غازی شهاب الدین غوری چه پر کفر یرغل کاوه نو ملکیار ورسره وو - نقل کا چه په یوه جنګ کښې مسلمانان پر شا ولاړل - نو ملکیار یرغل وکړ او په جنګ کښې دا ورسته پاړکی اشعار وویل نو غازیان وپاریدل د پیرد ښمنان یې وواژل او فتحه یې وکړه -

څښتن مومل دی اوس مو یرغل دی
هیوادد بل دی غازیانو ګوری
څښتن مومل دی

توری تیرې کړی دښمن مو پرې کړې
منګولې سرې کړې څله به تښتو
څښتن مومل دی

که تینګ کړو زړونه پر برې یو نه
چه زمری یونه اسلام راڅخه دی
څښتن مومل دی

غازیانو راسئ هتول شاو خواسئ
د شهاب په ملاسئ دښمن مو غوڅ کئ
څښتن مومل دی

وائی چه شیخ ملکیار به تل د شیخ اسماعیل سړبنی پر زیارت باندې د خدای عبادت کاوه - کوم وخت چه سلطان شهاب الدین

غوری لمړی وار پر ملتان باندی یرغل وکئ نو ملکیار ژوندی وو ـ
داد ۵۷۱ هـ خبره ده ـ تردی ورسته ملکیار ډیلی (دهلی) له
ولاړئ ـ او هلته مړ سو ـ او په دغه خاوره کښی ښخ کړ سو ـ
هغه غزا به یې د ډیلی د هستوګی په زمانه کښی کړی وی د کومی
چه لوړ بیان وسو ـ

**۵ ـ بابړخان:** داسړی د دوست محمد کاکړ پلار وو ـ دوست محمد
کاکړ لیکلی دی چه زما پلار د "تذکرهٔ غرغښت" په نامه یو کتاب نظم
کړئ وو ـ مګر چه کوم وخت می پلار مړ سو ـ پر هغه موقع زه نه وم
حاضر ـ نو چه را ورسیدم ـ دا کتاب چا ضائع کړئ وو ـ او زه د پلار
تر مرګ د کتاب په ورکید و ډیر غمجن سوم ـ که څه هم د بابړخان
اشعار لاس ته نه دی راغلی ـ خو ویلای سو چه د پښتو یو زوړ
شاعر او مؤرخ وو ـ

**۶ ـ دوست محمد کاکړ:** دوست محمد کاکړ د بابړخان
زوئ او یو پښتون شاعر او مؤرخ وو ـ ده په ۹۲۹ هـ کښی په ژوب
کښی د "غرغښت نامه" په نامه یو کتاب لیکلئ وو ـ دا کتاب یې د خپل
پلار د "تذکرهٔ غرغښت" پر ډول لیکلئ وو ـ او هغه د پلار خبری یې
پکښی راوړی وی ـ غرغښت نامه یو مستند او معتمد منظوم تاریخ
وو ـ چه غرغښت نیکه د حالاتو په هیڅ ته (ماسیوا) د نورو شاعرانو
او سړیو احوال هم پکښی وو ـ غرغښت نیکه د عبدالرشید بابا دوم
زوئ وو ـ او د کاکړو نیکه وو ـ د پټی خزانی لیکونکی محمد هوتک

واکتاب لیدلئ وُو۔ خواوس نه موندل کیږی۔ محمد هوتک وائی چه دَ "غرغښتے نامے" مثنوی دَ ډیرو خوږو بیتو درلوُونکی وُو۔ دا یو قسم درسی کتاب هم وُو۔ چه کشنیانو به په سبق لوُستے۔ دَ غرغښتے نامے یو حکایت په پټه خزانه کښی راغلئ دئ چه دَ سریو څو بیتو نه یے دا دی۔

له نیکانو روایت دئ
هسی توکه حکایت دئ
نور محمد کاکړ راوی دئ
چه یے فیض تل جاری دئ
دَ نیکانو له خولے وائ
چه منښت یے راته ښائ
چه کاکړ نیکه زاهد وُو!
لوئ ښتن له تل عابد وُو
تل ترتل یے عبادت کا
پردے لیارے ریاضت کا

نو معلومه سوه چه دوستے محمد کاکړ دَ ژوب او سیدونکی وُو۔ خو دا نه دئ معلوم چه سنځرخیل وُو۔ او که سنتیا وُو۔ نه یے دَ مړینے نیټه یادَ ښخیدو ځائے معلوم دئ۔

۷۔ **پیر محمد کاکړ:** پیر محمد کاکړ په پښتنو شاعرانو کښی دَ دیوان والو چے مقام ښتن او یو نامتو شاعر دئ۔ دئ دَ ښخه

دوه سوه کاله وړاندې د ژوب د سیمې د هند وباغ دو لکې (علاقې) کاسي مهتر زیو د کلي یعقوب او سید ونې او په خپله سنتیا کاکړ وو - د اټکله (تخمین) ویلای سو چه د دوه د ژوکړې نیټه به ۱۱۲۰ ھ دی - دی چه ځوان سو - نو د علم د طلب د پاره او د خپلو کلیوالو او تهبر (رقام) د نا خوښې له کبله د همیشه د پاره قندهار له ولاړی - او هلته میشته سو - په دې لړکښې وایي -

د کاکړ په لوی وکړ کښې تمیز نسته
خرمهره په بها پیرې د گوهر

او دا چه ع
خراب زړه وماته وایي وطن پریږده

په ۱۱۶۱ ھ کښې چه کوم وخت لوی احمد شاه بابا پر تخت کښیناست - او قندهار پایه تخت سو - نو پیر محمد د ښه پاخه عمر وو - احمد شاه بابا دې دربار له ورغوښت او د خپل زوی شهزاده سلیمان استاذ (اتالیق) یې وګرځاوی - پیر محمد کاکړ یو د پښتو کرامر کتاب د "معرفت الافغاني" په نامه ولیکې او د شهزاده سلیمان پر نامه یې منسوب کې - د پیر محمد کاکړ ژوند تر ۱۱۹۶ ھ پوری یقیني دی - ولې چه په دغه کال دده خپل دیوان پوره کی - او واسې یې د هغه تاریخ لیکلې دی -

زرسل شلپږ نوی کلونه
د هجرت تیر سوی وونه

ما انشا دَ عشق دیوان کړم
په پښتو مې بښه بیانه کړم

او تر ۱۲۰۳ھ د نغمه مرسوئ دئ - ولې چه په دا کال دَ ده شاګرد ابراهیم کاکړ دَ ده دیوان نقل کړئ دئ - او په خاتمه کښې یې پیر محمد کاکړ په داسې صیغه سره یاد کړے دئ چه د هغه څخه دَ ده مرګ ښه ثابتیږي -

پیر محمد کاکړ یو پوخ او پوه شاعر وُو - خپل دیوان یې پوره وکړه ردیف وار دَ الف نه تر ی پورې په خپل ژوند کښې مرتب کړ - دَ ده په نظر کښې پراختیا او په فکر کښې ژورتیا ستهٔ - دَه په خپله شاعرئ کښې دَ هئیت FORM او دَ موضوع MATTER ډیرے رنګا رنګه تجربے کړې دي - دَ دَهٔ په شاعرئ کښے دَ عشق او دَ هغه دَ لوازماتو دَ اخلاق دَ حقائقو او دَ هوښیارئ هر رنګه خبرے ستهٔ - دَ ګڼړو مختلفو مطالبو او نا هیمو اشعارئ په لنړه توګه دا دی - استعاره

منځ که دې ګلشن دئ یا څراغ دئ یا سور ګل دئ
زهٔ باندې بوره یم یا پتنګ یم یا بلبل

تشبیه و تجنیس - ے

خرابه دل مې له دے غمه په تنګ راغے
ګویا پتنګ له خپله عمره پتنګ راغے

بیلتون - ے هر سحار لکه بلبل پر ګل ناله کړم
نے زو ما په غاړه زاړے رباب ھمے لا

دُ دُنیا بے ثباتے ـ ۵

دریغه گل به دَ گلزاروی موږ به نه یو
دَ بلبل به پرے چغاروی موږ به نه یو

دَ قندهار ستائنه ۵

قندهارې په جمال جنت نظیر کړ
رب وماته ترکشمیر وتر کابل

مراعاة النظیر ـ

پر سینه دَ گل بدن گریوان پاره سو
دَ غنچے له چاکه رنګ دَ گل ښکاره سو

استغفار ـ

الٰهی ما پیر محمد په غفران پټ کړه
په دربار کښے دے ولاړیم په سر شتوړ

دَ هجر خوارے ـ

الٰهی پیر محمد کړ دیار په کوی کړه
چے یې جنت وته مومن انتظار وکیښے

قناعت ـ

دَ خپل کور پر اوربشینه قناعت کړه
دَ نور چا دَ حلوا مه سه کاسه لیسه

نادلده تشبیه ـ ۵ داشبنم دَ گل په پاڼړه پوری یخ سُو
که په غوږ دَ گلرخ هسے ښیښے والی دی

دَ پیر محمّد کاکړ کتاب "معرفت الافغانی" په دوو برخو کی بیشلی دی. یوه برخه یی نثر دی - او بله برخه یی نظم دی - خو دواړی برخی یی په خوږه سوچه او با محاوره پښتو کښی دی - دَ نثر جملی کښنی کښنی په زړه پوری او خوند وری دی -

یو څه جملی دَ دغه کتاب وا دی - کښت خواری غواړی دَ کښت اوس وخت نه دی - دَ کښت وخت لا اوس ور لیری دی - کښت ډیر مه کوه - واک به دی پری او نه رسیږی - او به نیری وچی سی. حاصل به دی له لاسه ووزی خواری به دی ابتاسی -

**٨ - ملا جان محمّد کاکړ -** دا هم بنه زوړ شاعر دی چه یو سل او یا کاله د مخه وو - دا شاعر دَ ژوب او سید وکی او کاکړ وو - دَ ژب څخه دا سی معلومیږی چه سنځرخیل به وو - دی دَ شاه شجاع په وخت کښی تیر سوی دی - بنه برله پوری شاعر دی دَ خانوزیو دَ او سید وکی او دَ پښتو ادیب او شاعر حافظ خان محمّد خدائی بخښلی څه دَ ملا جان دیوان ور څخه وو - حافظ صاحب غوښت چه دا دیوان چاپ کی خو اجل کښی یو ست پر دی نسخه باندی په خپله ملا جان محمّد نیټه ١٢١٥ ھ لیکلی وه - ملا جان محمّد دَ خپل دی دیوان په پای کښی دا لاندی عبارت چه دَ عربی او فارسی کړ ووی (امتزاج) دی لیکلی دی -

"تمت بعون الله تعالی فی یوم الخمیس وقت ضحی من ید جان محمّد نسخه هذا ١٢١٥ ھ ق فی شهر ربیع الاول

ۍ فصل نوروز وکتاب ازدست جان محمد شفاعت خواه محمد ولتعالی احمد در زمانه شاه شجاع درجاعت اخوند زاده شیر محمد استاد نادر ملک بنوں ایام طالب علمی شاگرد او بودم درآں جا حضرت شیخ سلیمان سنکړے ماو مذهب من حنفی وازنسل کاکړ و ملک من ژوب ـ"

ملا جان محمد خیل مړی          دیوان چه نوم یې "حلیدین"

په ۱۲۱۴ھ کښې بشپړه کړې وُو ـ خو دا ترا او سه هیچا نه دی لیدلی ـ خو د ۱۲۱۵ھ دیوان کښې د "حلیدین" چه ذکر راغلی دی دی وائی ـ

هرچه ما و کړه له سوزه د انشا،
دغه وارہ وُو ملت د
دغه هیځ لا نقت را لره نه دی
چه په ژبه زه نوم اخلم د خدا
ولیکن پرځای روا د ضرورت دی
چه تعریف یې کړم وهرچا ته نُما
ورمنم ورمی قبول په دواړ ستر کو
د پښتو خاوری می د ستر کو طوطیا

داسی نه چه د ده کم دی تصنیفونه

د ده خلور کتابه کړی دی مُهیا

برکت یئ تل له ما سره همراه وُو
خو دچه دی له برکته وو پیدا
ماچه دا دیوان تصنیف بعون الله کړ
یو لا بل "خلیدین" وی مسمّا
"خلیدین" په یو کال بس و د داور اندی
په تاریخ د فرنګیانو د عنزا
هرچه ما دغه سلوک پسې ویلې
مکړې ما جان محمد ځنې جدا

د ملا جان محمد دیوان چه د حافظ خان محمد مرحوم ځنځه وُو۔ د هغه مخونه ۳۵۸ وُو۔ او دا سې څلورزره اشعار پکښې وُو۔ د دې دیوان لمړې شعر دا دئ۔

ابتدا وانتها دئ رب زما
آفرین د هر پیدا دئ رب زما

ملا جان محمد خپل دیوان په ترتیب ردیف وار بللئ وُو۔ د ده یو څه شعرونه دا دی۔

زه راضې په خاکسارې شاد دربار یم
که شجاع له د ملکونو بادشاهی ده
که کاکړ دئ که غلجې که درانئ دئ
جان محمد په نسب ګذاره نه سې

۹۔ **شیخ تیمنی:۔** شیخ تیمنی د ۵۲۵ھ په شاوخوا ژوندی

وُو۔ زیاتره تذکرے او روایات وائی چه دے دَ کاکړ نیکه راوی وُو۔ دَ ده
اولاد تیمنیان "یا تیمنی کاکړان" بولی چه په غور کے پخوا اوسیدو
او اوس په هرات کښے هم اوسی او فارسی ژبه وائی په خپله کاک
نیکه له ژوب څخه هرات ته تللے او هلته مړ سوے دے۔ خو دا
نه ده معلومه چه شیخ تیمن هم په بلوچستان کښے زوکړے او
لوے سوے دے۔ او که په هرات کے ولے چه اولادے ئے هلته۔
نو دا سے معلومیږی چه په آخر عمر کښے او سیدلے او هلته مړ
سوے او شیخ سوے دے۔ دے هم دَ پښتو شاعر وُو۔ دَ ده یو څو
بیتونه په پټه خزانه کښے راغلی دی چه دا دی۔

کهیځ رونړا دَ نمر خپره سوه
زما په کور دَ ویرنا ره سوه
زړه می له دے ویرنے شلیدلے دے
په ژړا ژاړم څه نا ورینے دے
زړ غونه له او ښوی سا دینے دے
په نول نولیږم چه تا خونے راغے
نه به بیا یم نه به بیا راسی
نه به تیاره شپه زما رونړاسی

نه به شنهے راته پخوا سی
بیرېږم بیرے ئے اوس دیونے راغے

دَ ښُبتُنے یاردے هیر مونه کړے
آغلیه مَخ چه په یا نه کړے
اوربے دے پړیښووے واته کړے
په مَا دَ بلے اور کړ دونے راغے

**پیاوړے لیکوال :-** داهغه لیکوال دے چه یاڅوندے دے یاما یا په RECENTLY مړه دے - خو دَ پیاوړتوب دَ حیثه دَ ځرګند ځائے ښُبتُنے دے - یو څه دارنګه لیکوال دادے -

**عبد العلی آخونزاده :-** داپیاوړے لیکوال او شاعر دَ پښین څه ۲۳ میله دَ ختیځ قطب وخواته پراته دَ خانوزیو دَ کلی او سید ونکے او په ذات پانیزئے سنتیا کاکړ وُو - دے دَ عبدالخالق اخونزاده زوئے او دَ ملا عبدالرحمان اخونزاده لمسئے وُو - دے په ۱۲۸۹ھ کښے وزیږیدئے - لمړئے تعلیم یئے له پلاره وکړ - دے لاکښتنئے وُو - چه پلاریئے مړ سُو - بیایئے پرخپل اکا مُلاّ عبدالقادر آخوند سبق وُوایُ - څو موده پس یئے اکا ترکستان ته ولاړئے - او دَ هغه په وینا اخونزاده صاحب قندهار له دعلم دپاره ولاړئے - خوځوانَ اخونزاده صاحب په قندهار کښے خپل علم ترسره نه ورساوئے - هاے داسوچه دَ شاعر په حیثَ دَ قندهار په مجلسو او بازار وکښے ډیرزیا متوسو - چیرے چه به ده خپل اشعار او بدلی په خپله هم وئیلے او نوروڅلکو به هم اورُولے - له قندهاره څه دَ راستونیدو ورسته چه عبدالعلی

اخونزاده پښتې له راغئ - نو دلته مولوي محمد صديق صاحب او مولوي دوست محمد صاحب د منتهي (ترپايه رسيدلو) طالبانو ته درس ورکاوه - اخونزاده صاحب هم پر دوئ باندې پګړۍ (دستار فضيلت) وتړله -

د دې پسې اخونزاده صاحب درس وطبابت شروع کړو - نو درس ترې خښاپه سو - دئ ډير زړور - لوئ محور - ذهين وفطين حاضر جوابه او حکيم وفلسفي وو - تر دې د مشهورئ آوازې تر کابل وقندهار او ترهند وسنده پورې ورسيدې - نو دا وُو چه په کال ۱۳۴۹ھ د رياست قلات خان اعظم مير اعظم جان علامه عبدالعلي اخونزاده د خپل رياست قلات وزير معارف او قاضي القضاة ولګاوئ - دې کاله لا دُه دا د کار په ښه توګه وکړ - خو د مشر زوئ عبدالحق زبور يا هلال د ځان وژلو خودکشئ له جاته د اخونزاده صاحب پر زړه ډير اثر وسو - او دُه له دې منصبه څخه استعفئ ورکړه - او کورته راغئ - د مخه يې په کوټه کښې د طبابت دوکان وُو - او بيو بنځ راکوزئ سو - پائ ته د لوئ عالم - ګلک پښتون خوږ شاعر - د پښتو مينې غټ حاضر جوابه د قام په غم غمجن - فلسفي او مصلح پر ۱۶ شوال باندې ۱۳۶۴ھ مړ سُو - او په خپل کلي کښې پر يوُ ه غونډئ لوړ ښخ کړ سُو.

د دُه دوُه زامن ناصر حق چه ليونتبره خوډير فصيح البيانه دئ - نصير الحق چه اوس په انګلستان کښې او ښه ځيرک

اُردو، پښتو شاعري، او يو ه لوړ عالیه اساء چه مشره ده - او کور ساتی پاته سوه - دَ عالیې ليک افسانوي رنګ لري -

عبدالعلی اخونزاده سور صور تیمنی بري او سامنا که سړی وُو - سترګی يې لږ کښتنی او بزيره يې ګنړه وه - دَ بلوچستان مسلم لیګ ستو دغړي وُو - دَه دَ پښتنو بدرواجونه، عادتونه او بدعتونه غندل - او غوښتې يې چه ورک سي - دی يو علامه وُو - يوه لويه کتب خانه يې وه - چه څه دَه خرڅه کړه - او څه يې دَ مړګ پسې به دُولس زره روپۍ خرڅه کړه - اخونزاده صاحب پوخ شاعر او ښه نثر نګار وُو - په عربي فارسي کښې يوڅه مقالې يې پر خلافت و سیاست او عادات و بدعات باندې ليکلي وې - يو دَ پښتو لغت يې دَ لسو کسو په مرسته شروع کړي وُو - چه نه سو بشپړه په افغانستان کښې دَ پښتو په سرکاري ژبه کید و کښې دَ دَه لوی لاس وُو -

دَ اخونزاده صاحب دَ ځوانۍ پښتو کلام دَ "شاخ ګل" په نامه سره دَ کوټې فضل احمد غازي په ۱۹۵۷ع کښې چاپ کړي وُو - دَ آخر عمر او دَ پاخه عمر کلام يې تر او سه چانه دی لیدلی - دَ دَه دَ شاعري رنګ مجازي او عاشقانه دی - تر دې چه عشق يې ورته مشرب ته رسیدلی دی - عبدالعلی اخونزاده دَ فارسي او دَ عربي دَ کرانې توروپر ځای په سوچه روزمره او با محاوره پښتو کښې

خپل اشعار وُوېٔ دَ دهٔ په کلام کښې ډېر ښکالئے شته . دَ دهٔ دَ شاعرۍ بېلې بېلې نمونې دا دی ۔

رقیبانو راته ولاړ دی
تور مخونه سترګې رډی

مرګ ۔

که په عقل افلاطون سې
چه مرګ راسی ورته پرسی

دَ دُنیا بے ثباتی ۔

بنه بنا ئیسته په حسن پور چه مې لیدل ښکواني
اوس کوېٔ خولې منځ کو نجې کو نجې سپين وليښان تيريږي

نعت ۔

هغه څوک چه شفیع دَ محشر دے
پرے سلام و درود اکبر دے
دَ عبد العلی لاس ستا کریوان دے
بې توښې پخوا سخت سفر دے

عاشقانه ۔ ع

سپینه خوله له خندا کړه یا په شونډو کښې مسلے
په ځوانئے ملګ وُم دَ سیاه چشمانو
حلقه بګوش وُم دَ خوبرویانو

بلیتون ۔

یار د رومي اوزه نه مرم هرګوره بې وفا یم
ترکانړي په زره سخت یم تر او سپنه بالا یم

مشاهده -

ویره مینه خوار مینې کړې آخر کار چپ
له ګنګیر ویه زیات مرض کاندي بیمار چپ
د ګل یو دید لکه شبنم لمحه هم دې په ژړا
په یو کړې وصل راضي سم بیا فنا السره مې

نوې تشبیه -

نرګس په شان د سترګو حکایت کوي د تا
سنبل په دود د زلفو روایت کوي د تا

نوې خیال -

چه مې خوله ستا و بار خوته نه رسیږي
نه حسرته مې نیولې په دندان لب

۲- حافظ خان محمد مرحوم:- حافظ خان محمد خدائې بخښلې هم د خانو زیو د کلي او سید و نکو او په ذات پانیزې سنتیا کاکړ وو- د ده د پلار نوم عبدالرحیم خان وو- ده د اسکول لوستې تر پرائمري پورې او مذهب لوستې د حافظ آدم خانه څه پوره کړې وو- یو څه وخت په خانو زیو کښې په درس ګلیا وو- خو ولې چه زیاتره به ناروغه غونده وو- نو سیئ تدریس ایله کړې- او په کوټه کښې د جامع مسجد مخانخ" د

بلوچستان یک و پوځ په نامه د عربي، فارسي، پښتو او اردو کتابونو د
را والیسئ چه اوس هم موجود دي۔ د عبد العلي اخونزاده
نه نیتئ او مجلس ؤو۔ بائت ته زما خیال په ۱۹۵۷ع کښې
سر شو۔ په اپوزئ فورت سترینټ کښې یوه سپینه بیره
ملا چه ملا لالئ یې بولي او د یوسف پخلی کالو به وي، وویل چه
حافظ خان محمد روغ رمحه ناست ؤو۔ یوه سړی ته یې مخ ور وکړ ځاوئ
چه او پلائکیه ! اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهٗ لَا شَرِیْکَ لَهٗ وَاَشْهَدُ اَنَّ
مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ ۔ او مړ سو نو معلومه سوه چه حافظ صاحب نیک سړی ؤو۔
یو زوئ یې چه اوس د پنځه لسو کالو دئ پر دوکان کښینی حافظ
خان محمد خدائ بخښلی نړی، زړګی ناجوړی سړی ؤو۔ د کالج
د لوستو په زمانه کښې چه به زه د دوی د دوکان تر مخ تیریدم
نو دوی به سپینې چشمې پر سترګو لګولي، ته به د کتاب په کتنه (مطالعه)
بوخت ؤو۔ په ژمی کښې به یې کوټ وصدرئ دواره اغوستي
ؤو۔ زیاتره به یې پر کلکه خولئ تور پټکئ تاړه ۔ پرهیزګاره سړی
ؤو۔

په اردو کښې د دوی د ابوالکلام آزاد تحریر خوښ ؤو۔ دئ
د پښتو بنه شاعر ؤو۔ او د خو زرو شعرو دیوان یې تر اوسه ناچاپه
پروت دئ۔ د میاں عبدالحکیم نانا صاحب حال یې د دوی میاں صاحب
د ټولې رسالې په سر کښې لیکلی ؤو۔ د یو ز رحدیثو پښتو ترجمه یې کړې
وه۔ دا کتاب هم نا چاپه دئ۔ د عربي مدارسو نصابي کتابونه

لکه "نورالظلم" "تحفه نصائح" او "پنج کتاب" ئې د فارسي او پښتو ترجمې سره
چاپ کړل. د دوی پښتو شاهکار د دوی کتاب د "کسي ګلان" دی چه د بلوچستان
د لرغونو او اوسنیو شاعرانو تذکره ده. چه تر سل زیات کسان
پکښې دي. دوی دا کتاب چاپوی او مقدمه فضل احمد غازي پرلیکلې وه.
خو مرګ چټکي وکړه. او کار کړ پای سو. بیا د دوی اخښی په ۱۹۶۱ع کښې
و ما ته (صاحبزاده حمید الله) وویل چه ته مقدمه پرولیکه زه دا کتاب
چاپوم. ما مقدمه پرولیکله خو دوی کتاب نه کړ چاپ. ولي محمد
سیال هم د دغه کتاب د نامه تخه د خپل کتاب د "کسي ګلني پښتانه لیکوال"
نوم اخستی دی. چه تر چاپ لاندي (از زیر طبع) دی. حافظ صاحب
د محی الدین ابن عربي د کتاب "الانسان" پښتو ترجمه او د "تاریخ الحکماء" په
نامه کتاب غالباً په پښتو کښې هم لیکلی وو. دا دواړه کتابونه نا چاپه د دوی
په دوکان کښې پراته دي. دا ورستی د قاضی صاعد د طبقات الامم ترجمه را معلومیږي.

د حافظ صاحب پښتو شاعري اصلاحي او اخلاقي رنګ. د دوی یو څو
شعرونه وادی -

حریت :-

که د حر زندګی غواړې همت وکړه
د مریانو په سر ښلی همیش خښتي

مردم آزاري :-

تر ټولو بد و بد دی
که د چا عادت آزار سي

بے معرفہ دولت بے :

چہ چارہ دَ بیچارہ ؤونہ پہ کیږی

غانٔ محمدٔ پرِدے دولت والی لعنت

دَ پښتونٔ بے کمالی ۔

خستہ حال دَ پښتنو کړم خستہ دلہ

ځکہ نہ وایم غزلے عاشقتا سنہ

غلط بے زعم

چہ لہ ستنی ترکیبۂ بے تہ محتاج دے

خود پسندہ دا پښتونٔ پہ کم ھنر دے

دَ رواج نمندنہ ۔

چہ غلط رواج یٔ خوښ تۂ دا اسم دینٔ دے

دَ ھغو مسلمانٔ کښے لوئے خطر دے

۳ ۔ ملا عبد السلام اشیزئے :- ملا عبد السلام پہ ذات اشیزئے اځکزئے او دَ چمن لس میلہ ورا دے نحواتہ دَ کوږک غرہ پہ دنګو خوکو کے پراتہ دَ بناخہ پہ کلی کښے میشتہ دے ۔ دَ پلار نوم یٔ ملا حبش دے ۔ دا وخت ملا صاحب دَ یو نوے (۹۱) کالو سپینے ږیرے خوځوان همتہ سرے دے ۔ دَ زوکړے نیټہ یٔ ۱۳۰۰ھ دہ ۔ لکہ دے چہ وائی ۔ ع

پر زر درے سوہ هجری سنہ پیدا یم

دَ کور وکلی پہ باب کښے وائی ۔ ھ

زاد بوم وخانہ دارم در جبال

پنج میل از شیلہ باغ سمت شمال

لمړی کتابونه یې پرېلار ولوستل، بیائې په پشینې او په قندهار کښې لوستې پائې ته ورساوه۔ ع

دَ پشینې هم رار سید لئې څه امداد دئې

مُلا صاحب "دَ سوسن چمن" په نامه خپل دیوان په ۱۹۲۹ء کښې چاپ کړې۔ چه دَ غازی امان الله خان ستائنه او دَ انګریز غندنه پکښې وه۔ دا کتاب انګریز ضبط کړې۔ او وه یې سوائځې۔ دویم دغه کتاب دَ عوض دوه په ۱۹۶۴ء کښې پر ۳۲۷ پرانخو مخو باندې چاپ کړې۔ دویم کتاب یې "طلب مذهب"۔ دئې چه دَ فقهی احکام پکښې منظوم چاپ سوې دئې۔ مُلا عبد السلام دَ بلوچستان تر ټولو پښتنو شاعرانو پیاوړې شاعر دئې۔ دَ دوه په شاعرۍ کښې پند و نصیحت۔ سیاست اصلاح۔ حکیمانه خبرې۔ عام حقائق عشق۔ لوړ خیال۔ زوړه معنی دَ هیئت لوئې تجربې مطلب لمر څه سته۔ دَ دوه یو څه اشعار دَ نمونې په توګه دا دئې۔

دَ پښتنو ناصح ه

پښتنو لره عبد السلام یو ائځې
بنه ناصح دَ زمانې خوشحال خټک سو

دَ غازی امان الله خان ستائنه بیخې ډیره کوې۔ دَ دوه بلیر ته راتلو تر پایه ارمانجن وو۔

دَ غازی امان الله لمر په غروب سو
نصاری را باندې خاندی هم یهود

نو غازي امان الله هم فتح راوړه
نه توپ وه سره سم ؤ نه باروت
د سقاؤ غند نه کوي -

پر بچه سقه چول مه وهئ چمانو
د ورابانړ و لاتُت نه دئ عمروس

عشقيه -

چه روح ئې سرې په بل جهان کړه يږي
نه پريکيږي د خوبانو څخه الفت ۷
زړونه کانړي سرې باسي له مذهبه
چه پڅ خنک ستر کې راواړ وي د رنې ته
بنه په زلفو کښې ماښام د خولو عطر
پرما سنبلې ترملا نو د جنت ۷

غنچې ستا د مينې شونډې تندې ورې ما
چه پټې خاندې په اُخي ولې داړې ما

ماٰخذ - (۱) پټه خزانه " محمد هوتک " (۲) د پښتو د ادب تاريخ
(صديق الله) ښتين " (۳) رولې کلونه (قيام الدين خادم) (۴) پښتانه
نوميالياني " صاحبزاده حميد الله " (۵) پښتانه د تاريخ په رڼا کښې -
سيد بهادر شاه ظفر کاکاخيل -

چاپ سوئ " اولس " کوټه نومبر / دسمبر ۱۹۷۱ع

# یو شاعر یو ننګیالی

## خوشحال خان خټک

---

د نړۍ په شاعرانو کښې بیخي لږ داسې تېر سوي دي، چه
هم به د قلم او هم به د تورې خاوندان وُو- ولې چه پوهان وائي چه
د ادیب او د شاعر زړه د احساساتو او د جذباتو کور وي- چه د هغو
له کبله د ده زړه دوی نرۍ سي- چه دی تورزن نه سي کېدای-
ولې چه د تورې څښتن یوازې هغه سړی کېدای سي- کم چه
تر کاڼي او تر فولاد کلک زړه ورځخه وي- که موږ د نړۍ د نامتو ړو
د ادیبانو او شاعرانو یو لاړ ومخ ته کښېږدو، نو به دا خبره تر لمر ښکاره
او تر ورځ روښانه سي- چه په دوی کښې دوی لږ کسان د تورې
او د قلم څښتن دي- چه پر ګوتو حساب کېدای سي- د عربۍ
امرأ القیس او زهیر د فارسي حافظ و سعدي- د انګریزي ورډ
سورتھ او شیلي- د یونان هومر او ورجل د جرمني ګوئتې- د اطالوي

دانتے دار دو غالب او اقبال او د سنسکرت کالی داس تبوله پیاوړی اونامتو شاعران تیر سوی دی۔ خو په دوی کښی یوازی د عربی امراُالقیس د توری او د قلم دواړو خاوندوُو۔ نور تبوله یوازی شاعران اشنا سیان وُو۔ هاں د انګریزی بائرن یو څه جنګیالی وُو۔ چه دیونان د لوړ تیا او د ښوالی بلیرغ ئے پورته کړئے وُو۔ او د ترکو سره دیونانیانو د پاره جنګیدلئے۔ د فارسی فردوسی ستر رزمیه کتاب "شاهنامهٔ ایران" ولیکئے خو به څپله توریالی نه وُو۔ امراُالقیس څپله توریالئے هم وُو۔ او شاعر هم وُو۔ خو د دهٔ شاعری د توریالیتوب او جنګیالیتوب د خبرو څخه تشه ده۔ دا نامتو والئے او دو یاړه ورنوم یوازی د پښتو ژبے د ستر شاعر، د پښتو پلار د پښتو د میُنے د لوئے توریالی د زړه ور جنګیالی۔ او د کلک میړه خوشحال خان خټک په برخه ور غلئے دئ۔

خوشحال خان خټک هم د توری خاوند وُو هم د قلم۔ دئ په ۱۶۱۳ع کښی پیدا سو۔ دهٔ په وار وار د هندوستان د مغول باچا اورنګ زیب عالمګیر په وخت کښی د مغولو د لښکر وسره جنګونه اوکړه۔ تر دے چه دئے مغولو ونیوُو او په هندوستان کښی ئے بندی کئے۔ لاکن بیا بیرته دهٔ په یو څه توګه د مغولو د بنده خانی اخلاص کئے۔ او بیرته خپل خوا ښه اوګران وطن له راغئے۔ او تر مرګه ئے د مغولو تبولواکی او باچهی ونه منله۔ تر دے چه په ۱۶۸۹ع کښی مړ سو۔ او په اکوړی خټک کښی ښخ کړے سو۔ په دے جنګو کښی دهٔ د

مغولو ولبکر وته ماتې هم ورکړې - بله خواته موږ ګورو چه داسې جنګیره یو داسې شاعر هم دئ چه ډیر اوچت او لوړ لوړ شعرونه یې وئیلي دي - چه یو اځې دمخه شاعران یې وئیلائے سی - چه یوځ وشاعرئ ته ورخلاص وي - او ډیر مشق یې کړئ وي - بل دا چه دا شاعر یو بنه پوره عالم هم دئ - چه په ډیره آسانتیا سره دینی مسئلے ومذهبی خبرې په خپلو شعرو کښې راولي - د خوشحال خان شاعري او توریالیتوب یو په بل سره اخښلي دي - موږ د ده د شاعرئ و توریالیتوب ته سره بیلولای نه سو - سړئ دانه سي وئیلای - چه دئ جنګیالئ ډیر دئ او که شاعر ډیر دئ - د ده بنلو او غونلو دیوان د ده د پیاوړي شاعرئ ورځې یوه ځلانده او څرګنده نخښه ده - د ده د دیوان پر هر مخ د جنګیالیتوب او توریالیتوب خبرې خپرې دي -

خوشحال خان خټک د خپل قام پښتانه مینه او درد په زړه کښې درلود - د پښتنو یووالئ یې غوښت - دے توریالئ تر ډېره سخت او تر موم نرم زړه یې کوګل کښې درلود - چه د تورې ځائ به وو نو به سخت وو - او چه د شعر ځائ به وو نو به نرم وو - خوشحال خان د آزادئ پلټن د خپلوالئ بیرغ ورونکئ او پر پښتونوالئ ټینګ وو - دئ په خپل دیوان کښې د آزادئ سندرې وائې - د میړانې او توریالیتوب ستاینې په راز راز کوي - د جنګ و د تورې او د سپرو د نیزې شوقي دئ - ود ده ته د توروکړئ و شرکئ د نیزو و بر پیښناه او د مستې هاتیانو غورو مبکئ

ډېر خوند ورکوي - دې د مزرېانو خبرې لږ په خپلو شعرو کې لیکي - تر
ورو وسې وتر ملېرانیې وروسته د جنګ حال او د جنګ منظر خوشحال خټک
ښه لیکلې دې - خوشحال خان خټک په خپلو شعرو کې د کرګس و د باز
مقابله هم سره کړې ده - ولې چه دې په خپله پر آزادۍ مئین دې - نو دې
همیشه باز یعنې شاهین خوښوي - چه هم زورور دې او هم آزاد دې -
د ده یو کتاب دې چه نوم یې "بازنامه" دې - علامه اقبال د شاهین
تصور د خوشحال خان نه اخستې دې - د خپل وطن ستاینه داسې

کوي - ؎ د وطن ورې چندن اکر دې

خاوري یې وا ره مشک و عنبر دي

بل ځاې وائي -

چه سرې شهرو مې ځېنې په وخت داوري

بادشاهي د اورنګ زیب زوما عنبر که

د ننګ و نام او غیرت و مرانې په لړ کې داسې وېلې کوي -

د افغان په ننګ مې وتړله توره

ننګیالی د زمانې خوشحال خټک یم

بیا مخ وائي -

په خپل نام و ننګ چه راسم لیونی سم

خبردار کله په سودا و زیان دلګ یم

خپل ځان باز غوندې بولي او وائي -

لکه باز په لوئې لوئې ښکار زوما نظر دې

نه چه کرځې کونګ ټې نس باد خورک یم

دَ جنګ دَ درب و دروب، هائے و هوئے او شر و شور
خبرې خوشحال دا چول کوي۔ ه

دَ خوشحال خټک خوښې به هغه وخت وي
چه برېښنا دَ سپينو تورو سې دَ زغـــرو
توريالي ته وائي۔ ه

مست هاتيان خونې زمرې تورې وښکلي
که دَ سر وېره دې نه سې کار آسان دئ
دَ جنګليره ستائنه کوې او وائي۔ ه

موردې نه سې باندې بوره
چه ميړه دَ کارزار دي
بل ځائے وائي۔

ه

چه مئين په وسله نه وي
مرد دې نه وائي خپل ځان ته
دَ ننګيال و دَ جنګيالي په ستائنه کښې وائي۔ ه
چه جنګيالي وې دولت هغه موي
چه ننګيالي وې عزت لعغه موي
بل ځائے وائي۔
مَرد هغه چه همتناک برکتناک
دَ عالمه سره خوږ به ژوند وژواک

دیٔ والیٔ دَ ننګیالی پوازې دوه کاره دی - ه

په جهان دَ ننګیالی دی دا دوه کاره
یا به وخوری ککړیٔ یا به کامران شی

دَ خپل ځنګیالیتوب حال داسې بیانوی - ه

لا تر اوسه یٔ ما غزه په قرار نه دی
چا چه ما سره وهلیٔ سر په سنګ دیٔ

دَ مرانی او دَ توریالیتوب په ماسوا خوشحال خان پوهې ساری (بے نظیر) شیرین کلامه او نازک خیاله شاعر دیٔ - ډیولویٔ شاعر په شاعری کښې چه کم شان وی - هغه دَ دُوه په شاعری کښې هم تښته شاعر چه کمې خبری په خپلو شعرو کښې کوی - اهغه دَ هر چا په زړه کښې وی - خو هر سړیٔ یٔ هغه ځول نه شی کولایٔ - کله شاعر چه یٔ کوی - بنه شعر هغه دیٔ چه اوریدونکی یٔ په اوریدو سره داووانی - چه دا خبره خو زما په زړه کښې هم وه - بنه شاعر هغه دیٔ چه دی دَ ټولو خلکو جذبات، احساسات او واردات څرګند وی - یوائې دَ خپل ځان خبری نه کوی - حالی په خپل کتاب "مقدمه شعر و شاعری" کښې دَ ملټن دَ خولې دَ شعر دری خصوصیات لیکلی دی - یعنی سادګی، جوش او واقعیت، سادګی معنی دا چه دَ شعر توری ساده وی - ډیر ګران نه وی - جوش دا چه پر سړی تاثیر وکی او واقعیت دا چه داسې خبره وی - چه هغه رنګ کیږی - یا هغه رنګه کیدائی شی - چه وهغه ته حالی "نیچرل شاعری" وائی دغه رنګ شبلی په خپل

مشهوره کتاب "شعر العجم" کښې د ښه شعر تعریف کړې دې - کې جذبات چه
د الفاظو په ذریعه سره ادا شي هغه شعر دې - بیا پرمخ شبلي لیکي
چه یو یورپین مُصنف لیکي چه هرشې چه پر زړهٔ باندې د
استعجاب، حیرت یا جوش یا بل قسم اثر پیدا کوي - هغه شعر
دې -

که د دا تعریفو په رڼا کښې مونږ د خوشحال خان شاعرۍ
اوګورو نو دا خبره معلومیږي چه خوشحال خان لوې شاعر
دې - او ښه شاعر دې - د ده په شاعرۍ کې دا ټول خاصیتونه
سته - د خوشحال خان په شاعرۍ کښې لفظي ښوالې او
معنوي ښوالې دواړه سته - د ده په شاعرۍ کښې ظاهري
ښوالې یعني ښه ترکیبونه، تشبیهات، استعارات، محاورې او دا ټول
سته - د ده په شاعرۍ کښې اخلاق هم پکې ډیر دې - او پیغام هم
پکې سته - د ده په شاعرۍ کښې روماني عنصر هم سته - او د ده شاعري
د ترقي پسند نظریې او د جدید نظریې پر معیار هم برابره راځي - یعني
د ده په شاعرۍ کښې هغه خبرې هم سته چه د انسان او د
انسان د ژوند ژواک او غوښتنو سره اړه لري - ده ډیر ځایه
د محنت ښوالې بیان کړې دې - د دولت فائدې یې ښودلي
دي - وغیره نور ډیر شیان یې بیان کړي دي - د دا لوړو
خصوصیاتو له کبله دې د دُنیا په لویو لویو شاعرانو کښې شمارل کیداې
شي - لکه زهیر، سعدي - غالب - ملټن، ګویټې او نور -

خوشحال خان دَ عشق او دَ هغه دَ بیلو بیلو کیفیاتو خبرې هم کړې دي - دَ وصل دَ ادب دپاره او دَ دے ماسوا لکه ماچه لوړه هم وُویل دَ انسان سره اړه در لوُونکي خبرې ئې هم کړې دي - چه دَ هغه زمانې دَ شاعرئ نظریه ده - چه یعنې "ادب دَ رشوند دپاره" عجب داده چه دا پښتون شاعر چه دَ ننه خمار دے سوه کاله د مخه تیر سوئ دئ - خٹک دَ شاعرئ په هر اړخ پوه وُو - دَ خپل یار دَ ښائیست ستائنه دا ډول کوي - ؎

خود به ستا د مخه دَ ګیاه غونډې څرګند شی
ګل و لاله را وړه ستا رخسار لره کنه

دَ خپل اشنائ دَ زلفو ستائنه کوي او وائي -
؎ ستا د ګیسو دے پرچند نه باندې ښامار دی
ستا ري زلفې دي سنبل دَ نوبهار دی

دَ شونډو ستائنه ئې دا رنګه کوي - ؎
خوږې شونډې دي شکرې نه دي څه دي؟
ښکلې غاښ دي مرغلرې نه دي څه دي؟

دَ بیلتون سختګې دا سې ښئي - ؎
چه په ما باندې تیریږي ستا په عشق کښې
خدائ دې هسې حال پلیب نه کړ مسلمان ته

بیا لیکي وائي - ؎ په فراق دَ ښو یارانو چه ډیر ژاړم
دوا ړه سترګې مې پیغور کړه و باران ته

خوشحال خان په خپله شاعرئ کښے د اخلاقو ښوونه هم کړے ده۔ د علم و د جهل تو پیر ښئ او وائی ۔

علم تابیائی په پورته جهل تابیائی په کښته
یا عیسیٰ لره ودرومه یا فرعون ته ځان ساره

د صبر ستائینه کوی ۔ ھ

چه صبر نه لری ظفر نه مومی
ظفر له صبره سره تړلئ دئ

د وخت اهمیت ښئ ۔ ھ

که کار د نن ورځی پریږدی صباته
هوښیار به نه وی داخوئ نادان لری

د محنت او د کار کولو ستائینه کوی ۔ او وائی ۔

ھ چه محنت په ځان قبول که راحت مومی
رنج و گنج سره دا دواړه دی تړلی

دالاندی خویونه ستائی ۔ ھ

پیرزو، ښه سلوک، نمانځنه او لبے عدل
که دی داخویونه ستا څه غواړے نور

دالاندی خویونه غندی ۔ ھ

کبر، جنګ، حریص، بے زړه، چه دروغ وائی
د یارئ لائق نه دی دا خلق ور

د خوشحال خان په دیوان کښے داسے شعرونه هم

بنځې ډیرې دي - چه ژوُره معنی لري - او اوچت او لوړ تخیل پکښې وي - چه په دغه ډول شعر و سره حافظ، حافظ دی - او غالب غالب دی - ددهٔ دا رنګ یو ځو شعرونه ذا دي -

بنه بهار چه بلبلو پرې بلغاک کړ

د خزان له لاسه خوار سو دریغ دریغ

مګر مور دي د ختا د ملک هوسۍ وړه -

چه د مشکو بوئې دي د رومې د کاکلو

جور دا څخه ځي وړي چه و کلو ته هوس کا

یار که بنا ئیسته وي ته ئې هم جور و جفا وړه

که ئې زلف که ئې کاکل که ئې ګیسو دی

هملې مشک تاتار دي هغه کس

شیخ دی لوڼ روژه کا رند دي څکي پیالې اخلي

هر سړی پیدا دی خپل خپل کار لره کنه -

د خوشحال خان د شخصیت بشپړ توب دده په کلام راڅرګند شخصیت کښې نهام دی - دی نه یوازې د قلم او د توري څښتن دی بل داچه په دینې مسائلو هم ډیر خبر دی - د جهانباني او د باچهي په خبرو هم ډیر خبر دی - او یوه خواته یو ځ نصیحت کر دی نو و بله خواته یو آزمیلی او غښتلی څوک دی - او ډیر تجربه کاره دی - چه سا ړه او تاوده ئې لیدلي دي - په هر شي کښې دی د تجربې خبره کوي - او یوه خواته که دی " باز نامه " لیکي او د ښکار او د

مرغانو په حال خپله پوهي څرګندوي - نو وبله خوا ته مونږ ګورو چه دغه خوشحال خان "فضل نامه" ليکي چه د رشيد بيان غوندي مذهبي مسلي پکښي بيانوي - د دې نه د توري څښتن خوشحال بابا يو مُلا يا مذهبي عالم دی - او په دغه رساله کښي دی طبيب دی. او د کنړو مختلفو ناجوړيو او د هغو د ارو کانو او دواؤ نومونه ښئ - د پښتانه قام نبض کتونکی خوشحال شاعر د لته يو حکيم دی چه د رنځور نبض لټوي او د ټب حال ورښئ -

خوشحال په هيئت او په موضوع دواړو کښي ډيري تجربي کړي دي - دٔه په ډير لوی شمير کښي رباعيانی جوړي کړي دي. او بدوي او بږدي غزلي چه د ۴۰ يا ۶۰ شعرو دي هغه يې جوړي کړي دي - د خپلي زماني سياسي او اجتماعي حالات يې په ډيره ښه توګه څرګند کړي دي - د خپل بنديتوب، د خپلو د بيودو، د پرديو ظلمو، د پښتنو د بې اتفاقی او د مشرانو د غداري حال کړ د دٔه بيان کړی دی - د دٔه ديوان د هغه وخت د سياسي او اجتماعي حالاتو يو قاموس دی -

د خوشحال کلام ډير بخوالی لري - دی خدائي (فطرتي) شاعر دی - حقيقت دا دی چه دی د پښتو شاعري د لاري مشعل پورته کوونکی او څراغ بلوونکی دی - د پښتو شاعري د لشکر تيا او سيخلتيا دويم نوم خوشحال دی - دی د پښتو مثالي شاعر دی نه رحمن، خوشحال د عربي او د فارسي پر الفاظو باندي ډير قدرت

لری - او په پښتو کښې ئې داسې ځایونه - لکه زړګی چه په سرو زرو کښې غمی ایږدی - رزم واخلاق د دۀ د شاعرۍ دوه لوئې اړخونه دی۔ خوشحال د اسلامی ماحول عکس هم په خپله شاعرۍ کښې څرګند کړې دی او هم د پښتنی ماحول، دۀ د هیئت ډیرې تجربې کړې دی - غزلې مخمسات (پنځۀ مسریځې مسدسات (شپږ مسریځې) ترکیب بند۔ ترجیع بند - توتې (قطعات) او اوږدې غزلې جوړې کړې دی - د ژوندیو داسې اړخ او داسې یو حقیقت نشته چه پر لغه به خوشحال پُر مغزه اشعار نه دی وئیلی - د خوشحال شاعری د پښتو نوالی د طاقت، د اسلام د جلال او د ادب د جمال اینداره ده -

چاپ سوئ میاشتینزه "پښتو" پېښور

جولائی ۱۹۷۲ ع

# دَ عبد القادر خان خټک فن

---

دَ ستر خوشحال دَ کورنۍ یو ډیر لوئ ستۍ، بنه شاعر، لوئ لیکوال او نامتو ادیب دَ دهٔ زوئ عبد القادر خان خټک دئ چه دَ ډیرو کتابو مصنف و مؤلف دئ - او پر نظم و نثر دواړو باندې یو رنګه قدرت لري دَ عبد القادر خان دَ ژوند حال بنه نه دئ معلوم - یعنې دَ زیږید او مرینې نیټې په کره توګه نه دي معلومې عجبه خو دا ده چه دَ کابل لوئ لیکوال ښاغلي صدیق الله رښتین په ډیر قطعیت سره لیکي چه عبد القادر خان په ۱۶۱۰ ه کښې زیږید اسوئ او تر ۱۱۴ ه پورې ژوندئ وُو. (دَ پښتو دَ ادب تاریخ) خو ستر محقق عبد الحئ حبیبی دَ کابل چه په ۱۳۱۷ ه شمیر کښې یې په قندهار کښې لمړې ځل دَ عبد القادر خان خټک دیوان دَ دوو قلمي نسخو څخه تیار، صحیح او چاپ کړئ دئ - او یوه ډیره عالمانه او محققانه مقدمه یې ور باندې لیکلې ده۔ دَ عبد القادر خان دَ ژوند حال بل قسم لیکي۔ دئ وائي عبد القادر خان دَ خوشحال خان دَ مړینې په کال ۱۱۰۰ ه / ۱۶۹۱ ع کښې هم ژوندئ وُو.

او د خپل پلار په مرګ يې مرثيه ويلې او ژړلي کړي ده. مګر د دغې مرثيې څخه ښکاره ده چه دی د پلار په مرګ حاضر نه وو. لکه چه وائي.

په ارمان د ملاقات له مورره لاړې
زموږ ستا د ليدو وژمنه په عقبىٰ ده

تر ۱۱۱۴ه کاله پورې عبدالقادر خان يقيناً ژوندی وو. ځکه چه په دغه کال د ده يوه بدله ويلې ده. چه دا بيت له هغې څخه دی.

سن زر سل د جدائي څوارلس د پاسه
دا غزل مې په بياض باندې رقم کړ

په سنه ۱۱۱۲ه کال کښې ده خپل کتاب يوسف او زليخا نظم پای ته رسولی دی. د دې کتاب په پای کښې خپل زوی ته نصيحت کوي. او د سپينې ږيرتوب حال بيانوي چه بې‌بنته مې سپين او زوړ شوم.

په سن را غلم تر پنځوسه
په غفلت کړې م تر اوسه

وی‌بنته سپين خاطر مې تور شو
بد خصلت مې کله نور شو

د ځوانۍ بهار مې نحيور شو
رنګ د باغ د ګلو نور شو

پژمرده د ځوانۍ باغ شو
د هر ګل فراق مې داغ شو

له دے شمیره کړ موږ استنباط وکړو نو چه په ۱۱۱۲ھ کال
عبدالقادر خان د پنځوسو کالو وُو۔ البته د ده زوکړې کال په ۱۰۶۲ھ
وی چه د خپل پلار پر ځلولیسیت زوکړے دے۔ د عبدالقادر خان
د عمر د پائے ورځے نه دی معلومے مګر د ده له کلامه موږ دا اندیښ
استنباط کولائے سو۔ دے دیوے بدلے په پائے کښے وائی۔

هرکاره به بهادر شاه ځیرے خبر کا
حال عبدالقادر ره مه وایه سپړلے

له دغه بیته اوخاریږی چه دے د بهادر شاه په عصر کښے
ژوندے وُو۔ بهادر شاه معظم د اورنګ زیب عالمګیر مشر زوے وُو۔
چه د پلار تر مړینے ورسته په ۱۱۱۸ھ کښے باچا شوی او په
۱۱۲۳ھ کښے وفات شوی وُو۔

او تر ۱۱۱۸ھ پورے د عبدالقادر خان ژوندون یقینی
او ورورسته ښکاره نه دے۔ تر دے زیات کوم تعین د عمر په
خصوص کښے د ده له کلامه نه کیږی۔ او نه چا ضبط کړے دے۔
پر دے ځائے باندے د ښاغلی رښتین بیان پائے ته ورسیدے۔
ښاغلی رښتین زمایه خیال دا شعر د خپل استنباط بنیاد کړځولے
دے چه۔

سنه زر سل د جدائی خوارلس د یاسه
دا غزل می په بیاض باندے رقم کړ
بهادر شاه د نامه و شعر ته یے نه سوبام دا یوائی

دَبناغلی حبیبی غوندی لوئی پلټونکی دَخپل پلار خوشحال خان کارونو
او دَ خپل ورور اشرف خان خټک غوندی عبدالقادر خان خټک هم
دَ مغولو بندیتوب وړی دئ - ولی چه دئ هم دَ لښتنی پټ اوقامی
جذبې څښتن وُو - خو دَ دهٔ دَ نیولو او بندیتوب پر حال اوکره
کال نه دئ څرګند خو بنه ډیره موده په هندکی بندی وُو - داد اورنګ
زیب عالمګیر دَ باچهۍ زمانه وه - دهٔ به تل خپل خوږ وطن یادوئ
او دَ بیلتون اظهار به ئې کله کله په خپلو اشعارو کی داسی کاوئ -

بادِ بوئ عبدالقادر ه سحر راوړ
شګفته لکه غنچه په دغه باد شوم

بل ځائی وائی -

دَ اشناله لوری په خط را الره رانمی
بیا می اور په زړه تازه دَ اشتیاق شو

عبدالقادر خان لږ ډیر په هندی ژبه هم پوهیدئ -
او دغه خبره دَ دهٔ دَ اشعارو څخه څرګندیږی -

دَ خوشحال خان په کورنۍ کی عبدالقادر خان خټک ډیر
زیات لوستی او دَ علم څښتن وُو - زما په خیال سره دَ دهٔ تصنیفات
او تالیفات تر خپل پلار خوشحال هم زیات دی - انګریز ختیځ پوه
مستهر راورټی لیکی چه عبدالقادر خان خټک شپیته ۶۰ کتابونه
لیکلی وُو - خو افسوس وموږ ته تر ۶ زیات کتابونه، نه دی معلوم
افسوس که دَ دهٔ ټول لیکلی کتابونه معلوم سوی وائی -

نو به دَ پښتو ادب نقادانو کښې وائي - چه عبد القادر خان دَ پښتو نثر تولو لوئي مصنف دئ - او واسې جامع او همه گیر چه دَ نثر او نظم د مذهب او د قصص پر بیلو بیلو عنوانانو توباندې یئ نه اوچ یواځې قلم پورته کړې دئ - بلکې تر پوره حده یئ رسولې دئ - او د خپل موضوع حق یئ پوره پوره ادا کړې دئ - دَ دې شخه دَ ده لبسیار نویسي زود نویسي او پخته کاري څرګندیږي - په پښتو کې ما دَ یوه سري شخه دَ قرآن مجید ترجمه ولیده چه په پائ کې دَ عبد القادر نوم لیکلې وو - کیدائ سي چه دا ترجمه عبد القادر خټک کړې وي - او دا دَ دهٔ دَ لاس لیکلې نسخه وي - دا نه یواځې ترجمه وه بلکه لښتیره تفسیر هم وو - او پوره په درې جلده کې وو - دَ دې شخه دَ عبد القادر خان دَ دین دوستئ او دین پرستئ حال معلومیږي - دَ عبد القادر خان دَ کومو تصنیفاتو حال چه ستر محقق عبد الحئ حبیبي دَ کابل څرګنګه دیوان دَ عبد القادر خان په دیباچه کې لیکلې دې زهٔ یئ هم دَ نفعه عایه شخه دَ زیاتوب او دَ کمبوت سره رانقل کوم -

(۱) دیوان عبد القادر خان خټک دا دَ عبد القادر خان خټک دَ شاعرئ شاهکار او دَ ده مجموعه افکار دی او درې نیم زره قدر اشعار یئ پکې دی - چه عاشقانه، عارفانه، اخلاقي او اجتماعي رنګ لري - رباعیات یئ هم دَ غزلیاتو غوندې مضامین لري - دَ دیوان په پائ کې یئ متفرقات دي -

(۲) ګلدسته -

پہ دغہ نامہ عبدالقادر خان دَ شیخ سعدی شیرازی "گلستان"
پہ پښتو ترجمہ کړې دې - پہ دې ترجمہ کې عبدالقادر خان دَ خپل
ادبي قوّت ذہانت پورہ پورہ اظہار کړې دې - لکہ څرنگہ چہ دَ شیخ
سعدیؒ گلستان پہ فارسي کې دَ بلاغت ثبوت دې - دغسې دَ عبدالقادر
خان گلدستہ ہم پہ فصیح و بلیغ پښتو عبارت کې دہ - دَہ دَ گلستان نظم
پہ نظم کې او نثر ئې پہ نثر کې چاپ کړې دې مستر راورټي (RAVERTY) انگریز
دَ دې کتاب یو برخہ پہ خپل کتاب "گلشن روہ" (دلمر تیغ روہ) چاپ
۱۸۶۰ء کې چاپ کړې دہ -

(۳) نصیحت نامہ پہ تجنیس کې -

دا یوہ خوږہ او سلیسہ مثنوي دہ - چہ سر تر پایہ دَ تجنیس
پہ صنعت کې لیکل سوې دہ - پہ دې کې دَ شعر پہ دواړو مصرعو کې
دوہ یو قسم الفاظ راوړل کیږي - چہ معنې ئې جلا جلا وي - پہ
دې مثنوي کې عبدالقادر خان دَ خپل شاعرئ کمال دَ زړہ لہ
اخلاصہ ښکارہ کړې دې - خو دا کتاب نور ټول ورک دې -
یوازې دَ سر یو څو اشعار ئې دَ دہ دَ دیوان پہ متفرقاتو کې چاپ سوي دي -

(۴) چہلوېښت حدیث -

دا یو کښنی کتاب دې - تر نیمہ سوہ شعرو پورې رسیږي -
ورستہ تر ستاینہ دَ خدائے تعالیٰ او تر صفت حضرت رسول کریم صلی
اللہ علیہ وسلّم څلوېښت صحیح حدیثونہ ئې پہ پښتو مثنوي
کې ترجمہ کړې دي - دا کتاب عبدالحئ حبیبي صاحب لیدلی

ؤو۔ دَدے کتاب یو څو اشعار دا دی۔

ځکه ما څلویښت حدیثه په پښتو ژبه بیان کړه
په خپل ځان می ګرانی کښیښوده پښتو ته می آسا کړه
هو ښیار انو دی وټلی هرچه دوے خبرے ضم کا
هغه شخص به یو ځائے کی دَ ځکر دَ وینو کم کا

مومنانو ته باید دی ځه دا حدیث پیا دکا
ګنهګار عبد القادر دی په اخلاص په دُعا یادکا

څلویښت حدیثونه ډیرو وزرګانو عالمانو راغونډ کړی دی۔
لکه اربعین نووی رح، اربعین جامی رح۔ اربعین ملا علی مکی رح۔ او نور دَدے ترغیب
هم دَ نبی علیه الصّلوٰة والسّلام په یوه حدیث کی راغلی دی۔ په پښتو
کی یو بل سړی هم دَ حدیثو ترجمه کړے ده۔ خو هغه په نثر کی ده۔ دا
ترجمه دَ کوټے ناښتو لیکوال حافظ خان محمد خدائے بخنبلی کړے ده۔
او دَ یو زر حدیثو ترجمه یئے هم کړے ده۔ چه تر او سه نا چاپه پرته ده۔

(۵) آدم خان او درخانئ۔

دَ پښتنو په قامی داستانو کی دَ آدم خان او دَ درخانئ داستان
خورا ډیر شهرت لری۔ دَدے قصے یا نقل هیرو او هیروین یا مینه
او مینه دوا ړه یوسف زی وُو۔ آدم خان دَ حسن خان زوئے
او درخو یا درخانئ دَ طاوس خان لور وه۔ دوئ دَ مغولو لوئے

باچا اکبر (سنه ۱۵۵۵ء / سنه ۱۶۰۵ء) په زمانه کښې وُو- دا داستان یا قیصه المیه وطربیه کړه وه (COMEDY-CUM-TRAGED) داداستان

عبدالقادر خان په کتابي ډول کې لیکلې وُو- خو دا نه سو معلوم چه

دا په نثر کې وُو- او که په نظم کې نیم منظوم شالونه یې مستر راورټي

په خپل کتاب "گلشن روه" کې راوړي دي- جنرل الفنسټن هم

په خپل کتاب دکابل شرح (THE ACCOUNT OF KABUL) کې دُدې قصې

ذکر کړی دی- مگر افسوس چه دا کتاب اوس ورک دی-

(۶) یوسف او زلیخا-

دَ یوسُف علیه السّلام او زلیخا قِصّه چه په لمړي وار مُلّا

عبدالرحمان جامي دَ هرات په فارسي ژبه کې دَ ډیرې مبالغې او

تیز مجازي رنګ دَ مثنوي په ډول کې ترجمه کړې ده- په دې

کتاب کې عبدالقادر خان په خلور زره بیته کې دَ دغې په پښتو

مثنوي کې ترجمه کړې ده- په دې کتاب کې دَ عبدالقادر خان

دَ خپل کلام اعجاز دَ بخوانې په ډول ښکاره کړی دی- دا کتاب دَ

پښتو دَ ښو او غوره کتابو څخه گڼل کیږي- دی دَ دې کتاب په

سر کې داسې وایې-

داقصّه اول تازي وه

په تازي یې آغازي وه

په فارسي کړه فارسیانو

نظم، نثر سُخندانو

ما هم بیله تر حصه کړه
په پښتو مې دا قِصّه کړه
هر پښتون چه پر ناظر شي
په لوستو یې خوښ خاطر شي
له معنایې خاطر ښاد که
موږ دې هم په دعا یاد که
په خفیف بحر وېلی
کل دِ قت ځنې وتلی
لکه بحر صف صفا دی
هر گوهر یې شفاف دی
چه خفیف بحر شیرین که
هغه کس سحر مبین که

ما شیرین بحر خفیف کړ
بې جوابه مې حریف کړ
دا کتاب دهٔ په ۱۲۱۱ھ کې پای ته رسولی دی لکه دی
چه وایې — ۵ سن د هجر غین وقاف وو
اته کم پاسه د کاف وو
چه تمام شو دا کتاب
په پښتو شو انتخاب

دَ دغه کتاب قلمي مصوّري او مطلّا خوشخطي نسخې کله کله

پیدا کیږي ـ لهٰ ما صاحبزاده حمید الله خټخه هم دَ پښتو یوسُف

زلیخا یوه نیمګړې قلمي نسخه ستهٔ خو نقشي یا طلّا کاره نه دهٔ. البته

خطي نه دې بد ـ کیدائې سي چه داهغه دَ عبد القادر خان

ترجمه کړې کتاب وي ـ

عبد القادر خان دَ خوشحال دَ کورنۍ تر ټولو غړولوستې او

عالم سړې دئ ـ دَ فارسي سره سره دئ په عربي کي ډیر لوئې لاس لري.

دَ دهٔ درونند پلار خوشحال لهم په فارسي کي ډیره شاعري کړې دهٔ.

او کله کله خو دا هلي ژبانې غوندي پاخه شعرونه لهم وائې ـ خو دَ

عبد القادر خان فارسیت که څه هم په مقدار کي دَ خپل پلار دَ هغه

په مقابله کي لږ څرګند سوئې دئ ـ خو دَ پلار تر هغهٔ دَ دهٔ فارسیت

په پخوالي او استادانه مهارت کي زیات دئ ـ دَ دې اندازه دَ دې

څخه لګول کیدائې سي چه دئ یوهٔ مصرعه خپله جوړه کړې ـ او

دوئیمه مصرعه دَ فارسي دَ یو بل شاعر دَ پړي خوالیندو INVERTED

COMAS په میان کي راولي دا ډیر ګران کار دئ ـ و یوهٔ خوا ته

خو شاعر دَ غزلي سره برابره مصرعه کوري ـ بل ئې مطلب هم دَ لمړۍ

مصرعې سره سمون خوري که دَ عبد القادر خان دا شعر ښه وینا په

وخت او پاخه دهقان وي ـ

هر کس بدرود آخر هر آنچ بکشت

دَ دهٔ عربیت هم تر خوشحال نه تر ټولو پښتنو شاعرانو

زیات دي. داخو یو ده د ګرانو عربي قافیو څخه معلومیږي -
دویم دا چه یو غزل په پښتو، فارسي او عربي کي ګډه وده جوړه کړي
ده - دریم دی د عربي مصرع د قرآن شریف آیاتونه یا ټوټي په
ډیره آساني او چابکدستۍ سره په خپلو شعرو کي راولي - دا
خصوصیت یواځي د ارذو او د فارسي د پیاوړي شاعر علامه
اقبال په کلام کي موندلکیږي - لفظ هم یواځي د قرآن مجید
د آیتو ټوټي په شعر کي راولي، دا خو د عبدالقادر خان د عربي
او فارسي علم د ځرګندولو ما دغه دا ذکر وکړ - د ده د عربي
او فارسي مهارت مثالونه به په مخ کي راسي -

اوس موږ د ده د کلام و ځینو خصوصیاتو ته لږ غوندي وار
یام کوو - د عبدالقادر خان د شعر رنګ صوفیانه، عاشقانه
ناصحانه، او استادانه دی - کله کله حکیمانه اشعار هم وایي - دی
د عشق بیان کوي - خو د مجاز نه د حقیقت داسي معلومیږي
چه دی د عشق حقیقي د بیان د پاره د عشق مجازي دا ستر
یا پلسته ضرورت نه محسوسوي - صفا ځبره په صفا الفاظو کي ستر
او ریدونکي یا لوستونکي پوري رسوي - دی موږ حقیقت له
د مجاز په تنګو تنګو او نا ولده کوڅو کي نه بیایي بلکه پر ولده
او په پراخه لار باندي موږ وروي - دی د عشق بیان کوي - خو د
خپل پلار خوشحال خان غوندي په لا ابالي او رندمشربانه
انداز کي نه - او د رحمان بابا غوندي په سوز و ګداز سره نه د خپل

وروره هجري غوندې په خاموشۍ او په مايوسانه انداز کښې نه او نه د خپلې زړونې کاظم خان شيدا غوندې په شګفته او دلربايانه انداز کې دې   د عبدالحميد مهمند غوندې په تابعدارانه طرز کې هم د عشق اظهار نه کوي - که د ده و مجازي رنګ ته عالمانه رنګ ووايو نو بې ځايه به نه وي - عبدالقادر خان يو سوچه او مخلص عاشق دئ - او داسې معلوميږي چه په خپله صوفي صافي دئ يعني "قال" نه وائي "حال" وائي - "شنيده" نه وائي "ديده" وائي په دې د ده شاعري د حشو او د مبالغې څخه پاکه ده - خو کله کله تېز مجازي رنګ هم لري - چه ډير خونده وروي -   د ده   شاعري د ده په تصوف اخيستې ده - داسې عرفاني نکات به وائي چه سړی به حيران ورته پاتې سي - د ده عشقي شاعري داسې خوشګواري لري - لکه په ساز کې نغمه پاکه په اوبو کې رواني پاکه د سپوږمۍ رڼا - د الاندې اشعار د ده د عاشقانه شاعرۍ مثالونه وړاندې کوي

ساقي پاڅه پياله راکړه پاڼې بيد کا
د بهار د راتلو باغ وته نويد کا
چه يې ستا خوږې خبرې زړه صاف کا
د طهور شراب هغو وته لاف نه کا

که د وصل له لذته يې خبر سي
د بهشت و نعمتونو ته به شا کا

ژور تخیّل ۔

ډ بهار د ګلو کښت کوڅې نه شم
خپلې اوښې راته مخکې ګلې وړاندې کا
نازته مخ بویه نازک لطیف تر ګله
هر مخ ګله لمونبره مخ لري چه نازکا
بادرا والوت مخالف ناخدائ بیهوش شو
ګوره سر به په کوم لورې دا جهاز کا

د عبدالقادر خان دا پورتنی شعر د فارسي د دې شعر شعوري
یا غیر شعوري ازانګه دئ ۔

هوا مخالف و شب تار و بحر طوفان خیز
گسسته لنگر کشتی و ناخدا خفته است

عشق ته داسې تشبیه ورکوي او وائي ۔

ه هم تیره دئ هم تاریک دئ تر ولبته نه لا باریک دئ
ګویا جسر د سقر دئ خدائ دې څوک پرې اخته نه کا

او بیا و ریې وائي ۔

سوزنده لکه آتش دئ تر آتش لا سرکش دئ

دئ وائي کفایت، و قناعت او عاشقي دوه جلا لیرې شیان
دي ۔ عشق مرئ د باچا سیال کړي ه

کفایت په عاشقۍ کې نه ځائیږي
محبّت بنده زاده د باچا سیال کا

په عشق کې يواځې ننداره وي - خبرې نه په وصل او په
ننداره کې حجاب دی -

د وصل په وخت خبرې لوئ حجاب سی
عشق عاشق کړې گويا کلې يې لال کا

عبدالقادرخان د سپين زيرې د پاره د خوبرو يانو طمع
پيغور بولې او وائي -

سپين ويښته د بدنامۍ په وسمه تور کا
چه آرزو د صنارو يو د وصال کا

د يار د قامت نوې تشبيه او د نغمه ځخه را وتلې نوئ
مضمون يې کوري -

تر سايه يې د جنت خوښې موئ
د خپل يار قامت وماته شو طوبي

عبدالقادرخان خپل يار د "چين ماچين تاتار" بولي او نور
خوبان يواځې د "چين ماچين" او دا سې تو پلراو استعاره بيانوي -

ډير خلق مې وليد نه مې وليد شاپه ځير يو
ولاړ م چين ماچين ته نه چه چين ماچين تاتار ته

دا لهم مطلب کيد ايې سی چه شاعر وائې زه نه يواځې چين
ماچين تاتار ته ولاړ م بلکه چين ماچين                    يعنې د حسن
دوارې علاقې مې را وغوښتې په بخوانې ايشيائې ادب کې ( فارسې،
ترکې، پښتو اردو او نورو) د چين يا د چين ماچين حسن مثالې

بلل کیدی ۔ د خوشبوئی د پاره "مشک ختن" یا مشک تاتار"
او د سترګو د ستائنی د پاره د "آهوی تاتار" د سترګو نظیر راوړل
کیدی ۔ او حال دا دی چه د چینی او د جاپانی او د دا رنګه نورو
سیمو حسن دوی ته زیات نه دی چه مثالی وګڼل شی یا دوی
کیدائی شی چه د "شهزاده بهرام او ګل اندام" د داره رومانی
داستان تر اثر لاندی د ... د چینی حسن مثالی بللی وی ۔
ولی چه په دغه داستان کی ګل اندام د چینی د باچا لور او چیره
ده ۔ دغه رنګه په پښتنو کی هم تللی دی ۔ چه ته نورګوم
د چینی شاپیری یی ۔ نو عبد القادر خان هم د پښتو شاعرۍ د دغه
داره روایت پابندی یی کړی ده ۔"

ګلانو ته سترګی وائی او نوی مضمون را باسی ۔

ه د راتلو زیری دی باد په چمن وکړ
سترګی وختی د ګلو ستالیدل ته

ده شوخ او خوشګواره شعرونه د یار په ستائنه کی وائی ۔

ه ای په زنی ناشپاتی په شونډو قنده
په قامت تر سرو ونی لا بلنده
خوش خرامه ګل اندامه عنبر مویه
خود نمایه خود ستایه خود پسنده

نورو زلفو ته په "هند و بار" سره استعاره ورکوی ولی چه
د هندوانو مخات هم تور وی ۔

ه ستا په زلفو کې مې زړه هر کور پرېشان شو
مسلمان دې نه کا خدائې په هند و بار که

رعایت لفظی او تجنیس ته یې فکر وکې - چه څه ژور خیال
پیدا کوي چه وائي -

د هغو شهلا نرګسو له فراقه
همیشه مې تر نرګسو څې کوهر

د یار د خد اخوټی خوبه استعاره وائي او څه تخیل جنګوي
ګوري یې - ه

چه غنچه یې شګفته په تبسم شي
له ګوهر وي جهان ټول منور

د عشق د تپه څه نوې خیال را باسې او وائي -
چه یې زړه زما سوری د عشق په تیار کړ
تر هغه سوري مې مخ د اشنا ځیر کړ

د یار د خط یعنې زېړې د راتلو خبره په نا ولده طریقه
بیانوي او وائي چه د یار د مخ خط د حسن د بېزارۍ د خط کاغذ
دې -

حسن خط د بېزارۍ و مخ ته ورکړ
چه ښکاره سو په عذار و د نګار خط

بیا هغه د مخنۍ د بادو د دریاب خبره کوي - او وائي دا د
فارسي ترجمه معلومېږي -

سیند خوبی، باد مخالف، شپه تور تمه
گوره چرته به شے سر زما جها زه

د محبت اور د ځان دپاره د نوی ژوند پیلامه بولی او د
قفس غوندی نوی ژوند په دے اور کی موندی دی وائی -

ما ژوندون د محبت له اوره بیا موند
ځکه سو ځم په اختیار لکه ققنس

د شونډو د خال بیان -

په سر و شونډو یے تور خال دی چه ښکاریږی
که وانبتی دی په شهد و کی مکس

د عبد القادر خان دا شعر چه

د نسیم له تلو ټکانی معلومیږی
چه به زړ دے قدم د تللو په رکاب کل

د اردو مصحفی و دے شعر ته یو څه د رننږ دے دی -

چلی بھی جا جرس قافلہ گل پہ نسیم
کہیں تو قافلہ نو بہار ٹھہریگا

د صبا احسان مندی په عجبه تو که څر گندوی -

چه یے واخسته پرده د گل د مخه
مفت بار د احسانو نو د صبا یم

د عبد القادر خان محبوب څه معمولی څوک
نه دی - بلکه په دنیا کی مثال هم نه لری دا شعر یے حقیقت

معلومیږی۔

ہ بیخ تشبیہ، تمثیل یې لشته په جهان کې
نه پوهیږم چه یار څه رنګه وستایم

دزړه دځاځه ناولده مضمون را باسې او وائې ۔

ہ زه یې د رنځ په ځاه کې بند لکه یوسف کړم
بې یې د زلفینو د رسۍ خلاصې نه شم

دغم ود جدائی بیان کوی ۔ او د "یاڼ دخوړلو" نوی
مضمون د پښتو شاعرۍ ته راولی ۔

چه په مرګ سره له ځانه جدا کیږی
په ژوندون به یې له ځانه زه جدا کړم
نه به مخ په آئینه بیا برابر کړم
نه به تور اوربل په ږ منځ سره صفا کړم
نه به څټې په فلیل سره کړم غوړی
نه به نوره خوشبوئی په ځان ګلیا کړم
نه به سترګې په رانجه کړم نه به پاڼ خورم
نه به مهر آویزانه په اوربل بیا کړم

شرمنده به په ماتم کې بنفشه کړم
په ماتم کې به نه دے غوندی خندا کړم

ډیر عجبه مضمون پیدا کوی ۔ کله چې وخت دې هم د عبد الحمید

مهمند او کاظم خان شیدا غوندې نازک خیالي کوي - لکه دا راتلونکې شعر

ګوندې بخت مې د دلبر د زلفو په منځ کا
که فلک توکړې توکړې لکه شمشاد کړم

دې وائي چه شمشاد غوندې سم دم او بالاقد مې قسمت

توکړې توکړې کوي خو اوس هم نه یم خوابدی - ولې چه د شمشاد د

توکړو څخه خلک ږمنځې جوړوي - او کیداے سي چه زه لم د خپل

دلبر د زلفو ږمنځ سم - چه دا عین سعادت او بریالیتوب دې - د یار د

سپینې بارخو لتشبیه بیانوي او وائي -

د زلفینو تر حلقو دې عذار و یُنم
که لمر یې دې په زلفو کې مستم

د عبدالقادر خان دا رنګه د شوخ او تیز رنګ

عاشقانه اشعار او زور او باریک اشعار د عبدالحمید مهمند غوندې

غرابت نه لري - بلکه د شیدا تر داسې رنګ لا لعم خوار ه او خوشګوار

معلومیږي - د ده داسې رنګ د اردو د نامتو شاعر اصغر ګونډوي

ورنګ ته ورنږدې دې -

دې وائي اصل شي معنی ده - چه د عربیت او د عجمیت

سره کار نه لري -

د معنو په ملک فارسي عربي لښته
کوم نقصان که عرب نه یم عجمي یم

د " خام بدم پخته شدم " یوارخ څرګندوي او وائي -

اووم کباب دا ورپه تاؤ ژړا فریاد کا
که د عشق له اوره آه کړم لا خام یم

د عشق یوه ژوره نکته بیانوي او وائي چه
داسې وخت هم راسي چه عاشق معشوق او معشوق عاشق سي.
چه د فارسي ودې مصرعې ته ورنږدې تصوّر دئ -

عشق اول در دلِ معشوق پیدا می شود
عاقبت عاشق معشوق، معشوق عاشق سي
بنه چه زه اوته په عشق سوو سم په سم

عبدالقادر خان د معنی د اهمیت قائل دئ - دئ وخوند ته
گوري ورنګ ته نه گوري - صورت نه گوري معنی ته گوري لکه چه
وائي ؎

معنوي ښائسته غواړم که یې مومم
صورتي د ډېره زحمت وو تر ې ویزار شوم

خپل مخ او زړه او د یار لب و دندان داسې څرګندوي -

؎ سیم و زر دی زړه او مخ غني یم پر ې
لعل او دُر د یار لب و دندان لرم

د پښتو شاعرئ یو صفت یا روایت دئ چه په
یوه مصرع کې هم دوه جزوه وي او په دابله کې هم په ملرئ مصرع کې
چه کوم دوه جزوي - هم هغه په دادویمه مصرع کې راځي خو په
بدل ترتیب سره لکه د عبد القادر خان دا دوه شعره -

غواړه ګرځه عرب عجم نشته زما د یار لنبانه
نشته زما د یار ښانه غواړه ګرځه عرب عجم
زلفې په مخ کړه خم په خم کښېنه وماته مخ په مخ
کښېنه وماته مخ په مخ زلفې په مخ کړه خم په خم

دا په زړه پورې صفت عبدالقادر خان ډېر استعمال کړی دی.
خوشحال و رحمان هم دا رنګه غزلې لري - د خوبانو په لړکې وايي -

ښائسته د مُحکم دې په خوبانو
که په ستورو حسن زيات دی د اسمان

د مومن خان او شیرینۍ په باب داسې وینا کوي - دا د
شیرینو هغه قصّه ته اشاره ده چه د مومن سره وغزیده - مړه
شوه -

شیرینې ځان شیرینۍ ځار تر خپل میین کړ
په دا کار ګوی له کښلیو د وفا یوړې

د عبدالقادر خان په اشعار وکې لفظي مراعات او صوتي
تأثرات ډېر دي - لکه په دا لوړ شعر کې د شیرینۍ سره شیرینې
"او د ځان سره ځار"

د جفا مضمون داسې بیانوي -

په جفا به دې زړه بد شي که يې وکړم
تر خپل زړه پورې قیاس کوه د بل زړه

یو بله خیال داسې بیانوي -

لکه باد د صبا نغښتې غنوټې وا کا
غوړیده شي د دلبر و په لیدو زړه

عبدالقادر خان د یار د عشق څخه کېله من دی ـ چه ولې دسې تر زړه پورې ووت او لا بسا تې یې د رنګ یا قیام ونه کړ دې وائي ـ ه

هیڅ ا یستا دې یې نه وکړ تیرې پریوو ت
له نا وکې مې زړه لرې ګیله

د غه مضمون د اردو ژبې د نامتو شاعر غالب هم یو شعر دی ـ غالب تر عبدالقادر خان ورسته تیر سوی دی ـ دا رنګه په دې توارد کې پښتون شاعر د غالب څخه برمخ تللی دی ـ د غالب شعر دا دی ـ

ه کوئی میرے دل سے پوچھے ترے تیرِ نیم کش کو
یہ خلش کہاں سے ہوتی جو جگر کے پار ہوتا

د ښائیستو د ښائیست په زوال خوشحال داسې وائي ـ

په عشق به یې هیش جور وستم کړ
بنه چه تېر د ښائیست د ښائیست وار سو

د یار غم ښادي بولي ـ ه

سړی په جهان کې د هر وارډ ښادیو
نه دې یې بې غمه د جانان له غمه زړه

چه ږ منځ ووینې زړه یې د هغې د غابنو په شان تو کړ

تو کړې - نو وائي - ہ

له غیرته مې زړګي ټوټې ټوټې کړې

چه ئې ګوتې په ويښتو وهې شانه

پر مخ باد ږمنځې او د بیتا نو بحث دې - بځوابه د
لويو خلکو د ښځو سر مینځو ورمنځاوې نو ځکه وميمنه ته وينا کوي
اووائي - ہ

عمر به مې لږ سي که ئې تار د زلفو لږ سي

فهم کړه اے ږمې ا ږمنځ ږي ورو ورو چلوه

دلته د مینځې پر ځائے "ږمه" راغلے ده چه د مینځې یا شاید
د مزدورئ و نخواته اِشاره ده - دغه غزل د ده د پلار خوشحال خټک
پر غزل باندې جوړه کړے ده - ځکه خونو وائي -

دا غزل ځواب د خان د هغه غزل کیږي

خدائے له خپله یاره نه هیڅ یار مه بیلوه

دې وائي د ګلو پاڼې خوشې نه دي
خیرے صبا یو خه پټ ورته وئیلي دي ہ

بے هوده د ګل پاڼې خیرے نه دي

په رموز ورته وئیلي دي

د عبدالقادر خان په شاعرئ کې د مې
وساقي، صراحي و پیالې صیقل و میخانې او رند مزاجي خبرې
هم ډیرې دي - دلته ده د فارسي شاعرئ د روایت خځه

اخز کړې دی - دده په خاموشه متینه او سنجیده شګفته شاعرۍ کی د رند مشربی تیز رنګ یو څه نا ولده ښکاریږي. دی وائي - او د الړی شعر د حقیقت مجاز رنګ معلومیږي -

د ښیښې قلقلے سرود دی د مستانو
مستغني له دنیا او چنګه دی له نائیه
بل ځائے وائي ؎
له مستۍ می ښیښه پریوته له لاسه
ساقی قهر راته مه کوه ځوانی ده
پر مخ وائي ؎
خرابات لره به ځم له مومنے نه
چه یکے د دوار وکونوا مانی دی
یو ځائے د تیز عشق خبره کوي او وائي ؎
ساقی مانی زلفی بیا په مخ راغله
د تقوی مینه یے بیا کړه سپیره لوټه

عبد الحی حبیبی صاحب چه د عبد القادر خان دیوان یے چاپ کړی دی - لیکی چه د دے شعر دویم مصرع په یوه نسخه کی هندی ده - چه داسی ده -
چو بره خلق پیر بمار الوتر توته

یو مدهوشه شعر یے دا دی -

په قیامت به له قیامته خبر نه سی
چه یې ستا له ستر کو سوی مدهوش ده

عبدالقادر خان د تجنیس او د مراعات النظیر صفت بیخي ډېر بیانوي - دا خوئ زموږ د سیمې پیاوړي شاعر خدای بخښلي ملا عبدالسلام اشیزي هم درلود - عبدالقادر خان د یار د خولې په تشبیه کې وائي -

سخندان به یې په کومه خوله بیان کا
ستا د خولې تشبیه راوړه موښکل ده

بل ځائې د "جهان" د لفظ تجزیه کوي او وائي - ۵

نوم یې ځکه د جهان په جهان کښېښود
چه هنده دي قراري یې زمان نسته

بل ځائې د "سته" او د "نسته" په باب کا ئیږي ۵

د میړونو همه سته چه د تا نسته
مه وایه چه زما نسته د چا نسته

شبنم د ګل اوښکې بولي او وائي - ۵

هر سحر ستر ګې د ګل په اوښو ډکې
په دا باغ کې بې ژړلو خندا نسته

عبدالقادر خان د "یانه یانه سره سپاره" قائل دي نیمګړي کار ته دي خوښ نو وائي -

ساقي لمو سره شراب راچه تمام مست شم
تر نیمګړي مستئ به لمو ښیاري ده

دَ دهٔ یو ډیره خوندوره، مترنمه او موسیقیانه غزل ده چه مصرع یې او بږدے دی یعنی په اوږده بحر کې دی۔ دلته هغه غزل ذرهٔ بشپړه راوړم۔

ه

په لارے تلمه په مخه را غله یوهٔ دلبره پری رخساره
دَ نمر په شانه لاترے روښانه په کښلی مخ وه هغه نگاره
په قامت سروه، په تلو تیزروه ابرو کمانه غشی مژگانه
په سترگو بازه، خونریز ته سازه، په ویښتو لیلی په مخ نهاره
غاړه بلنده، خاطرپسنده، عنبرینی مویه یاسمین بویه
په شونډو لعله په زړه الماسه په سپینو غاښو دُرِ شهواره
په زنې سیبه بے له آسیبه په ملا ترخپلو ویښتو نریه
شیرینی کلامه، نازک اندامه، ول ول یې زلفی لاله عزاره
بے میو مسته، خوله نیلیت وهسته، وکه له نازه خالی الهٔ نیازه
سرترقدمه ثابته روغه، له هره عیبه پاکه بیزاره
مخ یې څرگند وُو نظر پر بند وُو، دَ مخ شعلې یې دَ مخ حجاب وے
په خیال خیال تلله نظرې نکړه هر کنر وچاته له کبره عاره
له ماغابه لکه بریښنا شوه، په محله لاړه که په سما شوه
په بلو کې پټه مخ ته په فانوس تشبیه ورکوی او وائې۔

هوس یې یو ورځ غم یې دړېر ښووُ
داغ یې بیا نوئې دربانده کښینووُ
مقصود یې دادے عبدالقادره
اوس پسے گرځه سیند افکاره

هیځ نه پوهیږم چه چرته داشوه
راته وُوایه اسے خبر داره

دَ فانوس په پرده څراغ کله پټیږی
که یئے مخ په پلوپټ وُو ما لید له

محبت بے اختیاره کیږی - او دَ دریاب په څیر په سرې راسی -

محبّت لکه دریاب په زړه را وخوت
دَ دریاب په مخ کی څوک تړی بندونه

دَدَه یو شعر دئے -

که لید لے دَ بنائسته وُبے نه وی
چا به څه کړواته واره جنتونه

دَ غالبؔ دا اُردو ینی شعر هم دَ دغه شعر ازانګه دئے -

وہ چیز جس کے لئے ہو ہمیں بہشت عزیز
سوائے بادۂ گلفام و مشکبو کیا ہے

عبد القادر خان دَ یار غم دَ بنا دیو سر بولی - دا یو نوئے تخیل دئے -

دَ همه بنا دیو سر دَ یار الم دئے
چه فریاد د درځنی کا ندی هغه کړم دئ

دَ یار دَ غم دَ ملکر تیا څه عجبه لوئے مضمون راباسی -

دَ عبد القادر خان دَ شاعرئ یو خصوصیت مضمون آفرینی او معنویت دئے - دئے ډیر ځله ژوره کتنه او عمیقه جائزه څرګندوی - او په بالراست دَ شیدا او عبد الحمید دا دَ طریقے

څه برعکس ژوره معنی او مضمون پیدا کوی۔ داسې شعرونه
د دهٔ په دیوان کې بې شمیره دی۔ چه د ده وصف دی د پښتو د لویو
لویو شاعرانو په صف کې دروی۔ د یار د غم مضمون یې داد ی۔

چه یو دم مې له خاطره نه بیلیږی
لاله تا نه د تا غمخوار زما دی

د عبدالقادر عشق ډیر ژور او محیط و بسیط دی چه
په رګ رګ یې ننوتلی دی۔ دی وائی۔

عشق مې ځائې په رګ او پلوکې زوماوینو
تر به وُوزی هاله چه وُوزی وینې

د دغه مضمون د اردو اصغر ګونډوی یا غالباً د بل چا یو شعر
دی ؎ میں کیا کہوں کہاں ہے محبت کہاں نہیں
رگ رگ میں دوڑی پھرتی ہے نشتر لئے ہوئے

د پښتو شاعری دویمه پنګه اخلاقی او صوفیانه شاعری
ده۔ لمړی لویه برخه یې عاشقانه شاعری ده۔ لکه د فارسی
شاعری روایت چه دی۔ او ورسته د اردو شاعری روایت سو۔ د پښتو
شاعرانو د جنس و عشق د غزل سره سره د اخلاقو او تصوف خبری
هم کړی دی۔ دا روایت خوشحال، رحمان، حمید، شیدا، هجری،
پیر محمد او نورو ټولو شاعرانو پاللی او ساتلی دی۔ عبدالقادر
خان هم د اخلاقو او د تصوف اشعار وائی۔ خو د دهٔ په تصوفی
خیالاتو کې اخلاص ډیر دی۔ د رحمان کلام مجسم تصوف دی۔
د خوشحال د تصوف رنګ بې ساخته آزادانه او د یو جنګیره

دَ حمید په تصوف کې تصنع او زور کې انداز ډیر دئے۔ شیدا دَ تصوف
څه خلاص دئے۔ او پواځې یو و نیم اخلاقي شعر وائي خو عبد القادر
یو مرد باصفا او صوفي صافي معلومیږي۔ دَ دهٔ دَ تصوف اشعار دَ دهٔ
دَ زړهٔ آواز معلومیږي۔ دهٔ خپله شاعري دَ فارسي دَ نامتو شاعر
مولانا عبد الرحمٰن جامي "مړ سوئے سنه ۱۲ھ" غوندې دَ تصوف
په اوبو اخښلې ده۔ اوس به دَ دهٔ پر صوفیانه شاعرئ یو نظر اچوو۔
دَ ښه زړونو تیر ؤ لو دپاره دَ بلبل شیراز دَ دے شعر په مصداق چه۔

آسائش دو گیتی تفسیر این دو حرف است
با دوستان تلطف با دشمنان مدارا

عبد القادر خان خټک هم په یوهٔ خپله پرله پسې بدله
کې وائي۔

۵

دا خو بونه که دانا سړے اختیار کا!
په دنیا په دین به جوړ ېږې کار و بار کا
عبادت دَ حق په صدق دَ په اخلاص کا
تل له خپله نفسه جنګ کوے کارزار کا
په فقر او سخاوت کا بے منته
په حاجت کې استغنا له دنیادار کا
و دوستانو ته تل پند و نصیحت وائي
له دښمن سره په حلم ژیست روزګار کا
له تمامو خلقو ژیست په انصاف کاندې

په رښتيا وي حاصل خپل اعتبار سه کا

شفقت مهرباني کا په کوچنيو

د لويانو په خدمت حاصل وقار کا

جاهلانو سره زيست په خوشحالی کا

که هر څو په بد وئيل يې زړه آزار کا

هميشه عبدالقادر غوندي آزار وړي

چه نه څوک آزاروي نه له چا آزار کا

د فارسي د مشهوري مصرع - ع

باخدا ديوانه باش و با محمد هوشيار

تفسير بيانوي او وائي - ے

چه خلاف دي له سنت کا ځان يې اوروي

که له فرض او له واجب خلاف نه کا

خدائ به خپل گنهگار عفوه ستا په روئ کا

ولی ستا گنهگاران به معاف نه کا

په دا پسې او د ا غزلی استري شعرې دي - ے

په طوائف يې مفتخر عبدالقادر کړه

خوارشي څوک چه تر روضه يې طواف نه کا

دنيا قمار خانه بولي او وائي - ے

دا دنيا راته ښکاره قمارخانه شوه

هر څو دير که د کټي آخر يې بای سه کا

قناعت خوشحالي او بې غمي ده - دې د صبر و قناعت او
راضي برضا تاکيد و کتې بيانوي - ه

له غمونو ځکه خلاص عبد القادر شو
چه په خپله بخره خوښ شو حرص نه کا

خوار و چه نکر نه بير پيرې - چاغ او دولتمن د کهاندې
ختبتن وي - دې وائي - ه

د قصاب له چارې خوف د لاغر نشته
په رمه کې تل لو بتنه د سمين کا

چيرې د غالب صفه تخيل چه ه
سب کہاں کچھ لالہ وگل میں نمایاں ہوگئیں
خاک میں کیا صورتیں ہونگی کہ پنہاں ہوگئیں
او چيرې د عبد القادر خان دا تخيل چه دا هم د ځمکې سره
اړه لري - ه

جهان څه چه اسمانو نه به کړو وجشي
که د قبر حال ښکاره ور ته زمين کا

دې وائي د عالم شر د عالم شر دې - شَرُّ العِلمِ شَرُّ العَالم -
د عالم فساد، فساد د درست عالم وي
شيطان کله هو نبره چيره ويراني کا

عبد القادر خان وائي عالم و بل ته نصيحت کوي
خو په خپله عمل نه پرې کوي - "يعني ديګران را نصيحت

خود رافضیحت ؑ وب ته وائی چه غیبت وزنا سخت دی گناه خو بخیله
دَغیبتو ځانی ځانی کی - ولی چه په حدیث شریف کی رائی -
اَلْغِیْبَةُ اَشَدُّ مِنْ سِتَّةٍ وَّ ثَلَاثِیْنَ زَنْیَةٍ فِی الْاِسْلَامِ - غیبت
تر شپږ دیرشو زناو سخت دی - دغه خبره دی په دے شعر کی
کوی چه وائی -

نصیحت کا چه غیبت تر زنا سخت دی
په وی دَ غیبتونو ځانی ځانی کا

دَ دے غزلی په آخر کی ئے خپل نوم په داسے شاعرانه
کمال راوستلی دی چه دَ عبدالقادر گیلانیؒ نوم هم دی داسی
وائی -

په عمل دَ گیلانی سپی ورځنی بنه وی
په خوله ځان عبدالقادر جیلانی کا

دَ دُنیا دَ بے ثباتی په باب وائی دلته دَ باد په رعایت برباد
راغلی دی - عبدالقادر خان دَ رعایت لفظی چیر خیال ساتی -
شعر ئے دادی -

دَ سلیمان تخت چه په باد آخر برباد شو
په قارون په ژوندون وسوه تماشا

دی وائی رندالا یعنی آزاده روان یعنی متصوفین
آزاد منشه وی - دَ عامو خلکو غوندی تصر ځائی او تصر وخت
دَ خلورو منهبو وتو پابند ته کوری -

که خبر شې د رندانو له مشربه
نو به تير شې تر خلور واړه مذهبه

پخ ذهن څوک د استاد په بنوونه، نه
سې ځيرک کيدائ - دئ وائي - ۵

د استاد په سنې کله ذکا موې
چه مفطور وې هغه څوک په بلادت

لکه ورو سته چه به هم وولي سې - عبد القادر خان په عربي
ژبه کې ډير لوئ لاس لرې - په دا پورته شعر کې هم "سنې ذکا
مفطور" او "بلادت"، د عربي ژبې تورې دې - "چه څه کرې هغه به
ريبې" عبد القادر خان ودې ته اشاره کوې - او وائي -

بنه وينا په وخت د لو پاخه د هقا د مه
هر کس بدرود آخر هر آنچه کشت

د دغه مضمون د مولانائ روم د مثنوې معنوې
يو شعر دئ - ۵

از مکافات عمل غافل مشو
گندم از گندم بروید جو ز جو

عبد القادر خان د تدبير ود تقدير پر نازک موضوع
باندې داسې وائي څرګندوې - چه يعنې نجات د خدائ په فضل
دئ ۵ ستا تدبير دوزخ دئ جنت کار سپارل تقدير ته
خلاص سه له دوزخه ځان داخل که وجنت ته

دَ دُنیا په باب دیو عجب قافے شعرئے دا دئے ــ

چه یئے سپے کړه دَ دُنیا له ځانه ځخ ؎

هم هغه کاندی ځانے خلاص دَ دیوال اخ

دَ شا او دَ ګدا مقاله سره کوی او وائی ــ ؎

که په شا بانانے په ډیش په سمور تیر شو

ګدائی هم په کندکی روغ وُوتے له برده

یعنی دَ ع

بادشاهان مال مست وما ګدایان حال مست

تفسیرئے و راندے کړئے دئے ـ دَ دهٔ یوهٔ په زړه پورے

غزل ده ـ چه دَ قافئے او سترئے تورے دویم وار ورسره تکراریږی ـ

د ا راز هم خوب صوتی تاثیر پیدا کیږی ـ او هم معنئے نه خرابیږی ـ

یعنی دَ حشو په معنئے کے نه رائحی ـ دا هم دَ شاعرئے یو صنف

دئے ـ او لړئے شعر دَ دے غزلے دا دئے ـ

مزنونه یئے کا یو څو په انسر سر

بیا یئے ماتی کاندَ دوران غضنفر فر

پر اورنګ زیب دَ عالمګیر لګیږی ــ ؎

اورنګ زیب په څه خلاص ورځی موږی

دارمری دارا شکوه سکندر در

دَ ازار رسولو غند نه کوی او وائی ــ ؎

په معنئے کے بشر نه دئے پراکند لیوه دے

چه دَ دهٔ د لاسه موږی تبشر شر

دئ وائی۔ ؎

دَ کعبے تر طوافو نو

بنه دئ لا دَ زړه طواف

یعنی ع

دل بدست آور که حج اکبر ست

دَ فقیر حال و اسباب عبد القادر خان داسی بنئ۔

اسمان خونه دَ فقیر ده!

نالے محکمه نور لحاف

قرآن والی پے کوری۔ ؎

تل له خدائیه ترس کوه عبد القادره

حق یے خائف ته دی وئیلی لا تخف

دَ منافق حال وائی۔ ؎

له صادقه مخالف دی منافق

منافق له منافقه موافق

دی وائی ؎

چه آخر احوال دَ دوارو سره یو وی

څه ناست یے په تورو خاورو څه اورنګ

یعنی ع

چه بر تخت مردن چه بر تخته خاک

دَ دنیا وَ دَ آخرت تو پیر داسی بیانوی۔

داد دُنیا پہ مثال شپہ ورځ آخرت دئ
نیک او بد به ځله بیل کے بے اشکالــــه

دپیانے دَ قلقل دَ آوازه څه داسے مضمون راباسی
چه وایه وایه، ولے چه په عربی کے دَ قلقل مطلب دئ
وایه وایه - دئ وائی ـــ ه

ومطرب ته مینا وائی وایه وایه
دا معنی یے پید اکیږی له قل قل

دے عمله شیخانو په لرکے وائی ـــ ه

خان بازید بولے کارونه دَ بیزیځ کا
له شیخانو ځکه زه بے اعتقاد شوم

عبدالقادر خان ځان مرد آزاد بولے او وائی ـــ

نه خپلوے په چا کوم نه مے څوک خپل دی
په عالم کے لــه لمــه بیګانــه یــم

یعنے دَ الطاف حسین حالی پر چم ـــ ه

عالم آزادگان ہے اک جہان سب سے الگ
ہے زمین اس کی اور اسکا آسمان سب سے الگ

دَ نبی صلی اللہ علیه وسلّم دَ شفاعت په باب
وائی ـــ ه

چه شفیع مے دَ ګناه خیر الانام دئ
غم مے نشته که هر څو شر الانام یم

دَخدائے دَ کرم او دَ حساب کتاب په لړکے داسے وینا

کوی ۔
ھ

که کرم رابانددے کاجنت می ځائے دے

که حساب راسره کا اهلِ سقریم

عبد القادر خان دَ کینے او حسد څخه دومرہ بیزاره دے

چه دَ شیطانی سره کینے کولے لاهم دَ ځان دَ پاره عار بولی ۔

دے داسے وائی ۔
ھ

دَ حسد نه خو په هسے رنګ خلاص یم

عار راځی چه دَ شیطانه کینے کوم

دَ فناپه باب څرګندونے او وائی ۔ چه که نوح

علیه السّلام هم په ۹۵ کاله یے وخپل قام ته تبلیغ کړے وُو ۔ او بیا په

کشتئ کی له طوفانه خدائے خلاص کړے وُو ۔ دَ ډوبند

دَ کشتئ کښتیوان سی لا به هم دا کښتئ ډوبه سی دَ فنا په دریاب کی

دے وائی ۔
ھ

دَ ډوبندون جهاز به غرق دَ فنا سند کا

که په ځان یے نوح نبی سی کښتیوان

دَ عبد القادر خان یوہ بے مقطع غزل دے ۔ چه په صفحه کی یے

دَ کائنات دَ حال په رڼه سره دَ اسرار دَ کائناتو دَ معلومولو په تلک

حیرت څرګند کړے دے ۔ او وائی چه لښانے یے نه موندیږی ۔

نو هغه بے نشانه خدائے به څوک څنګه پیدا کی ۔ خو معرفت یے

کوراۓ سی - هغه غزل داده - ه

نمر سیوری مې محکه آسمان
ځان په ځان په ځان حیران
اوبه سرو مې له کاهیو
تسپه او ورځ کاندي فغان
لر موني سوي د آتش دي
باد هم گرځي سرگردان
چه لښبان یې موندة نه شي
څوک به مومي بې نشان

یوه بله د پښتو شعر و غزل او د موسیقیت بنه او
بنکلې نمونه یې داده - ه

چاموندلی دی ناري وهي هوهو
څوک طالب ځني پوښتنه کاکوکو
عرشیان یې پرستش کاله فرشیانو
فرشیان هم پسې گرځي په سوسو
د دوي خبري مه کوه مطربه
په ټنگ ټیو وایه نه دو دو
چه راغلی له عدمه دي وجود ته
آوازیو تر یې کوي چه به څوځو
د ځواني شاهین باغي سورابه نشي

که فریاد عبد القادر کاندے فوقو
عبد القادر لاڼی د بنځے کار بولے اَو وائی ؎
مرد یئے مه گڼه چه لاڼی یئے کړدے کا
مرد کړده بے لاڼو کا بنځه لاڼی ده

دے وائی د خان لوئے وصف چو وړے خوړول اَو سخاوت دے چه دانه وی نو خان په څه دے۔ اَو بل لوئے وصف یئے مړانه او توره ده ۔ ؎

د هر خان چه نه چو وړے وی نه توره
نه جواب یئے دربان وکا چه خان نشته

دے وائی چه بنه خلک خوار اَو بد خلک باچهی کوی۔
چه په عقل غوبانه شپانه ترے بنه وی
په دا دور رهبر هغه کاندی خانے

ترد ے د مخه په یوه غزل کے وائی چه د ظالم تعریف و عزت مه کوه۔ او د قرآنِ مجید و یوه آیت ته اشاره کوی او وائی ۔ ؎

که دے لوستے د "لاترکنوا" آیت دے
سکه هرگز د ظالمانو اعزاز مه کړه

بل ځائے بیا د قرآنِ مجید و یوه آیت ته حواله ورکوی کومه شپه چه رسول صلی الله علیه وسلم هجرت کاوے۔ او په غار ثور کے د دهٔ ملګرے حضرت ابوبکر صدیق مار ووا ...

او دهٔ مبارک دخپلې خولې لاره پر وروا چوله او بیا چه دکفارانو د پښو کښنکی سو، او حضرت ابوبکر صدیقؓ پر دې وبیریدئ چه نبي علیه السلام را نخه ونه نسي — نو پیشوا مبارک ورته وویل چه "لَا تَحْزَنْ إِنَّ اللّٰهَ مَعَنَا" ته مه بیریږه خدائ زموږ ملګرئ دئ —" نو عبدالقادر خان وائ چه د "لَا تَحْزَنْ" په ږغ د حضرت ابوبکر صدیقؓ بتول درد او غم هیر سو۔ د دې آیت څه د عبدالقادر خان د قرآن مجید ژوره مطالعه او د دهٔ علمیت و عربیت څرګندیږي۔ او س دغه دوه شعره لیکم۔ ے

د رحمت دریاب هغو وته په جوش دئ

چه دائم ژړا څکر واکه په خروش دئ

"لَا تَخَفْ" او "لَا تَحْزَنْ" د هغه برخه

چه له ډیره غمه نیښي پر باندې نوش دئ۔

دلوئي موند لو راز نبي او وائي — ے

هر سړئ چه کمینې کی لوئ به موي

هم په داخادم مخدوم، شاګرد استاد شي

دئ وائي چه دوه خوره او څلور بوله انسان د هیڅ پیا نه دئ خوښې۔ باید چه د سړې د زړه و د خولې لاریوه وي او و دې خبرې ته د قلم په څوکه تشبیه ورکوي۔ چه میان يې پرې وي او دوهٔ ځایه وي۔ او ډیره عجبه تشبیه ورکوي — ے

عاقبت به مخ تورن لکه قلم وی
هرسړی چه دوه ژبی لکه قلم وی

دَ بد خوئی په لړکی وائی -

چه بدخوئی دَ رکی پیدا سی ژړی ورک کړه
بوټی وخیژی له ځایه خوشنکی وی

دا دَ انګریزی دَ دی متل کټ مټ پښتو ترجمه
معلومیږی - ځکه دا سی نه ده THE EVIL IN THE BUD (
NIP) کله کله خپله هستی ورکول دَ اجتماعی فائدی وغواړه لمړی قدم
وی دَ ډیرو شاعرانو دا انداز وئیلی ده - عبدالقادر خان
دلته یو بل اړخ څرګند وی او دَ انفرادیت ختم کولو څه دَ
خودی په پمعنی غرور ورکول مطلب اخلی - او وائی -

دَ خودی بار چه وباسی له سره
دَ حباب ناره یی لاوړه شی دریا شی
خو وجود دَ زړی شته هو مره زړه
خو چه محو کړی وجود کاندی آفتاب شی

دَ عبدالقادر خان دا شعر -

مبارک هغه بنده چه اخر بینی وی
کل محنت راحت وده ته یکسان وی

دَ فارسی دَ هغه شعر از انکه " صدائی بازگشت "
دئ چه یوه مصرع یی داده -

ع مرد آخر بین مبارک بنده ایست

دَ مرګ په باب یو عجب خیال څرګندوي ۔ ۵

بنه مرګ دَ خاکسارانو غونډے راکړے

چه وارث ته مې سپیرے ایرے شي پاتې

دَ عبدالقادر خان ۲۳۱ رباعیات په پښتو ادب کې یو پُراند

زښته او خوراکثورو دئ لکه څرنګه چه دَ (رباعیانو) مزاج دئ دَ عبدالقادر

خان رباعیان هم دَ اخلاقو و متفرقاتو بیان کوي ۔ په پښتو کې

تر ټولو زیاتے رباعیانې خوشحال خټک وئیلے دي ۔ چه اندازاً

پنځه سوه دي ۔ عبدالحمید مومند هم په سوو رباعیانې وئیلے

دي ۔ خو دَ عبدالقادر خان رباعیانې دَ خپلے شمیر دَ کمبوت باوجود

او دَ خوشحال خان دَ رباعیانو تنوع او په زړه پورې کیدو سره

سره په ټولې کې دَ خپل زور معنویت له کبله ورسره برابرې دي۔

دَ خپلے محترم او ورانه پلار غونډے عبدالقادر خان هم مزاحیه

او طنزیه سبق آموزه څلوریځې وئیلے دي ۔ دوے داسې

رباعیانې یې داوي ۔ ۵

نن کانده چرخ عجب ساتګونه کا

چرګان ککړے چرګې بانګونه کا

له مستئ وازدي تروړي ګیدړه نه خوري

لوږې په غار کې مځرې پړانګونه، کا

ناراسته ښځه غم او ربشی کا
لاتر بچیانکیو او ربشی تشی کا
پیشو تر یې پی ختې داور ته کوری
همره پری نشی چه پیشو پلیشی کا

د ځوان مرد حال وایې — ۵

ځوانمرد هغه دی چه لکه شمع
د ځان په سولو مجلس کا جمع
د بل د پاره که په خندا وی
په مخ یې وری باران د دمع

یوه ناولده رباعی یې ده — ۵

الله می رب دی زه یې مربوب یم
بنده د ده یم که خوب ناخوب یم
غرق په او بو کی که او به وینه
نعمت یې نه وینم په نعمت دوب یم

د گناه اعتراف کوی او د خدائے نزدیکت موی — ۵

بد یم دا نه وایم چه زه ښاغلی یم
په مرئیې والی د تا راغلی یم

مرگ می قبول دی شرط دی ندوی
تښتی بنده یم در ته راغلی یم

د دغه مضمون غالباً د شیخ فرید الدین عطار شعر دئ
چه وائي۔ ؎

برِ در آمده بنده بگریخته
آبروئے خود ز عصیان ریخته

مناجات وائي۔ ؎

ربه له غیر و چاروی وژغوره
باران د فضل راباندے وه وُوُوره
زهٔ که بدکار یم اوٌتے د نار یم
ته خان ته گوره و ماته مه گوره

دا رباعی د فارسی د هغه رباعی آزانګه
معلومیږی چه یوهٔ مصرع ئے داده۔

ع برمن منگر بر کرم خویش نگر

د ورکړی و د پښتنو پیرداسی بیانوی۔ ؎

چار شم قربان شم د پلار ستر تیند ه
راته ئے اووے ز مسافر زنده
لذت د ورکړی تر ساتلو ډیر دئ
خوئے خبر نه دئ مسکله خونده

یوهٔ عجبه فلسفیانه رباعی ئے دی چه نور و شاعرانو
هم دا خیالات ښکاره کړی دی۔

؎

چه په کې ایښې ښه صورتونه دي
ځکه پر ځمکه ښکاره ګلونه دي
قدم پرې ورو ورو په احتیاط ږده!
دا توري خاورې کښلې مخونه دي

ودغه ته نږدې خبره غالب کړېده چه وایې - ۵

سب کہاں کچھ لالہ وگل میں نمایاں ہوگئیں
خاک میں کیا صورتیں ہونگی کہ پنہاں ہوگئیں

د عربې ژبې نامتو فلسفي شاعر "اَبُوالعَلاءِ المَعَرِّی" هم دغه خیال څرګند کړې دې -

صَاحِ هٰذِهٖ قُبُوْرُنَا تَمْلَأُ الرَّحْبَ
فَاَيْنَ الْقُبُوْرُ مِنْ عَهْدِ عَادٍ
خَفِّفِ الْوَطْءَ فَمَا اَظُنُّ اَدِيْمَ الْاَرْضِ
اِلَّا مِنْ هٰذِهِ الْاَجْسَادِ

۱ - دا راز زموږ قبرونه چه ځمکه په ډکه ده. نو د (یوقام) د زمانې قبرونه څه دي -

۲ - پر ځمکه باندې پښې قرارا کېږده ولې چه زما په خیال سره د ځمکې مخ ټول د انساني صورتونه جوړ دې - د بسیار خورۍ تا وان (د دینې دپاره) دا سې ښې - ۵

که ښې ښځې ښه ښه پوښاک وي
که ښه آسونه او ښه املاک وي

چندان نقصان یې سړي ته نه رسي
ځان ته اودين ته بد ډېر خوراک دی

تللی وخت بيا نه راځي تر وروخ وتلي او به بيا نه جاروزي
دا نکته عبدالقادر خان خټک بنه وايي ــ ؎

اېشارو لره دا هسې ژاړ ې
له چا فرياد کړې څوک سې غواړې
که تل فرياد کړې له کاڼي سرو ې
بيا به رانه شي او به چه ولاړې

کجي (کږوالی) نه وي بنه شاعر د الف څه دا نکته راباسي
او وايي ــ ؎

تر هر څه بد دی کجي خطر دی
کجي به نه کا چه دانشوري
الف چه سم سي کجي يې نسته
ځکه تر نورو حرفو نو بردی

د عشق او د تصوف څه ماسوا چه عبدالقادر خان
ډېر او چت شعرونه يکي راايستلي دي ـ نور هم مختلف
او کړه و د اشعار ده وسلي دي ـ لکه معاصر او سياسي
شعرونه ـ خود خپل نامتو پلار په مقابله کي ده معاشرتي
وسماجي يعني د پهولني سره تړوني درلوونکي اشعار لر ولي
دي ـ معاشي او اقتصادي خبري هغه وخت دوني نه وې

دَعبدالقادرخان یو وصف دا دئ چه دَ ډیرو قصیدے یَے لیکلی دی۔ خوداد چا دَ امریا با چا په ستائینه یاد ځه غوښتو په باره کی نه دی۔ بلکه یواځے دَ نامه ترحده قصیدے خو په اصل کی خپل تأثرات دی۔ دَ ترجیع بند، ترکیب بند، او مخمس هم لیکلی دی۔ دَ دهٔ دَ فضل دَ کمال یوه بله نخښه دَ دهٔ تاریخ گوئی ده۔ چه یواځے دَ فارسی شاعرانو او یو څه دَ اردو شاعرانو برخه گڼلے سویده۔ دَ خپل دَ ستائینے (تولی) او دَ خپلے شاعرئ په باب هم یه دے رڼی شوکی دَ خان په باب داسی وائی۔

کله زهٔ عبدالقادر دَ شعر لاف کړم

مرثیے دَ تللیو وایم ماتمی یم

بل ځائے وائی۔

درو غجن ورته خپل ځان نیولی اُستی

په رښتیا عبدالقادر تیره صمصام یم

دَ خپل عزتمن پلار خوشحال خټک په باره کی

وینا کوی۔

ځان خوبزه کړه تر فارسی عبدالقادره

که ښخواوه تر خه ژبه دَ پښتو

دَ رحمان بابا په لړکی دَ طنز و مسخرو په توګه وائی

زهٔ خټک دَ یار په غم تازه تازه شم

غوریه خیل رحمن که شوو رځی ستړی

دَ پښتو دَ لویدلي حالت او دَ دوئ دَ بې اِتفاقۍ په باب کې وائي۔

پښتانه کوته اندیش دی
سور غلیم ته زیات دَ خویش دی
نوشدارو یکی نایاب دی
وار ه زهر وار ه نیش دی
حریصان طامع ستر ګوړي
په بدخوئ ما ګله دریش دی
ملکان یې آدم کش دی
کفر کش کاچه درویش دی
پیر مرشد یې جهالت وی
نه په دین دي نه کیش دی

دَ خپل پلار په تعریف کې وائي ۔ ـ

که عقل یوه که تیغ که ډیک وُو
په پښتانه کې دَ خوشحال بیګ وُو
زړئ یې همّت په شمار دَ سلو وُو
زړه یې سخاته دَ صحرا دیګ وُو

په منفریقاتو کې دَ عبدالقادر خان دَ "ګل" قصیده
هم لیکلې ده چه ۲۶ شعره ده ۔ مطلع یې داده ۔ ـ

شګفته په باغ او راغ شو لو بهار ګل
هم په بام هم په کوڅه هم په دیوار ګل

پۀ یوۀ قصیده کې عبدالقادر خان محی الدین
اورنګ زیب عالمګیر د امیرانو او نورو واکدارانو په لړکې
خپل ناګوار او ترخه تاثرات ښکاره کړي دي. دا رنګه نظمونه
د اردو شاعرانو هم ښکاره کړي دي - لکه د میرزا محمد رفیع
سودا مخمس شهر آشوب د مرزا خان داغ دهلوي شهر آشوب
او نور د دې قصیدې یو څو شعرونه زۀ دلته لیکم - دا رنګه قصید
عبدالقادر خان د عالم شعر په معنی کې اخلي یعنې لکه عرب چه
په قصیده کې هر رنګ خیالات ښکاره وي - دلته د قصیدې
هغه مفهوم نه دې کوم چه د اردو لوستونکي یې څنې اخلي -

حاکمان او امیران د دې زمین
چه لیدل شي په دوران د محی الدین
هیڅ حاجت د عیان نشته و بیان ته
خود یې حال دې ولمرچا ته مبین
هکې وارۀ مذموم په خوئ خصلت دي
بې یو نشته بادشاه ته د تحسین
د راجپوت و رافضي په استقبال ځي
عالمانو ته هسک نه کاندي سرین
د مسجد پر لوري شل شي نه وردومي
تل یې آس په پوچ چار ولېږي زین
خر څر یې وارۀ په کالو او په کینه وي

لکه ښځې ارائش کاندې تزئین
د دهقان په خوارول یې سترګې سرې شي
په پټي چه زراعت ووینې شین
هر ظالم چه تعدي یې په رعایت کا
په قیامت کې به یې مقام کاندې سجین

که باور دې په رانشې ورسه ګوره
په قرآن کې بئس مثوی الظالمین
په یو مربع کې د خپل پلار ستائینه کوي چه دوولس
بنده دي - لمړی بند یې داسې دی - ۵
خدای یې ته لکه خپل نوم لره خوشحاله
خوشحالي یې په نصیب کړه لایزاله
خرهنر نیکو سیرت نیکو مقاله
خود یو هیڅ یې هیڅ پښتون یې نه وو سیاله
یو بل بند یې داسې دی - ۵
اندیښنه یې وه هر ګوره ډیره لویه
اجنبي به یې کم نه کا نه تره زویه
افغان ده غوندې چه زیږیږي به بویه
آزاده وو هیڅ یې نه وه ماله منا له
یو بل بند یې دی - ۵

نوم یې لاړو ترډکن ترقند هاره
نه وُو بل بعضې نامې له زمینداره
نیم درم یې هم کور نه ساتهٔ له عاره
نور هیڅ نه وُو دده بې توره بې واله

اوس یې د تاریخ کوټ دوه مثالونه وګورئ۔ د شیخ سعدی لاهوري چه د حضرت بنوري خلیفه وُو۔ د وفات تاریخ یې داسې لیکې۔ فارسي۔ ؎

شیخ سعدی قدوهٔ اهل یقین
چون منور گشت از و زیر زمین
از خرد جسم حساب رحلتش
در جوابم گفت شیخ مؤمنین ۱۱۰۶ھ

دوباره د کال تاریخ لیکي۔ ؎

په هر کاله کې د مړګ ماتم دې
و بانیو لې اکثر عالم دې
بنه بنه یاران یې ځلی جدا کړل
تاریخ یې راغلې چه کال د غم دې ۱۰۹۵ھ

تر اوسه پورې مو د عبدالقادر خان پر شاعرۍ باندې د موضوع (MATTER) له حیثه بحث کاوئ۔ اوس به یو څا- دده پر هیئت (FORM) باندې وکامئ۔ و داخو د ټولو نقادانو او لیکوالو متفقه فیصله ده۔ چه موضوع تر هیئت زیات اهمیت لري۔

عبدالقادر خان اوّل پښتون شاعر دی - چه د ده په کلام کی ډېر علمیت او لښکره عربیت ځلیږی - دی په عربی ژبه ډېر ښه پوه دی - او ځای په ځای د قرآن مجید آیتونه یاد لغویو څه برخه په خپلو اشعارو کی راولی د ده د عربی ژبی مصرع هم جوړولی او دا یو داسی نادره خبره ده چه د لوی خوشحال خټک تراوسه حاله پوری د بل شاعر په نصیب نه ده سوی - همسی هم دی تر خپل پلار زیات د عربی ژبی لغات استعمالوی - د ده یوه مشهوره سه آتشه ده چه په پښتو عربی او فارسی کی یې ویلی ده - لمغه دلته نقل کت منی ور اندی کوم -

بیا پر مخ وینو دلربای نقاب
اِفْتَحْ یَا مُفَتِّحَ الْاَبْوَاب

گل شگفته شو په هر لوری د بهار
اَلصَّبُوحَ اَلصَّبُوحَ یَا اَحْبَاب

ریز ساقی می باقی در جام
ببانگ دف و نی و چنگ و رباب

چه تا قدم په خاورو کښینو وفلک
قَالَ یَا لَیْتَ رَبِّ کُنْتُ تُرَاب

چه جدا شوی مینه راشی بکن
سببی یا مُسَبِّبَ الْاَسْبَاب

اور مې قبول دې جدائي دې نه وي
هجر محبوب راسې ګل عذاب
ذَلِكَ مَنْ طَمَعَ عَزَّ مَنْ قَنَعَ
څوک قانع شده اُولُوا الْأَلْبَاب
بې خدايه ويره شرک خفی است
وَهُوَ الْقَاهِرُ وَهُوَ الْوَهَّاب
رب په عمل مې دې همه دَ بدې
تُبْ عَلَيَّ فَإِنَّكَ التَّوَّاب
ته رحيم وکريم وغفور
زه که هر څو څم په راه صواب
عبدالقادر چه دا غزل کړ بيان
څوک بې کاندې په پښتو کې ځواب

او رښتيا چه په دا سې غزل که څوک ويار وکې نو چه خبره به نه وې - زه دَ ده يوه بله پوره غزل وړاندې کوم چه هغه دو آتشه يعنې لړې مصرع دَ پښتو او دويمه دَ عربې ده - دا غزل دَ ده عربيت بشپړه ښکاره او ژور علميت ځلانده نمونه ده -

۵

مخ په تمر لورې جلوه کوې دَ يار
اَبْصِرُوا اَبْصِرُوا اُولِي الْاَبْصَار
بې محابا نه ما کره کښېږده قدم

لَیسَ فِی الدَّار غَیرُنَا دَیّار
په بد صحبت د بنی زوی شو خراب
اِتَّقُوا مِن مَجَالِسِ الاَشرَار
په ورکول سر وصال مونده شی
اَلبُشرٰی ذَا یَا مَعَاشِرَ التُّجَّار
طعن و پیغور و ما ته مکړه شیخه
اَنَا عَاصِیٌ وَ رَبُّنَا غَفَّار
که رقیب وُوینی له یار ه سره
قُل اَعُوذُ بِرَبِّ کُلِّ نَهَار
د خُواب څوک دی چه آواز و کاندی
لِمَنِ المُلکُ وَاحِدُ القَهَّار
رب به یار عبدالقادر ته ورکړ
وَقِنَا رَبَّنَا عَذَابَ النَّار

د عربی ماسوا د عبدالقادر خان فارسی استعداد هم اُستادانه او مشاقانه دی ـ دی په ډیره استادی او پرکاری سره د پښتو په سینه ساده کمبله کی د فارسی د رنګینه څرخیو نقشونه جوړ وی ـ د ده د فارسی استادانه مهارت بی اختیاره موږ پردی وسیلو مجبوره کوی چه که څه هم په کیفیت (QUANTITY) کی د ده د پلار فارسی کلام ډیر دی ـ خو په کیفیت (QUALITY) کی عبدالقادر خان تر ده کم نه دی.

دَ فارسي کمال ئې په داپښتو فارسي دوآتشه کې کوړې -

زړه مې هر کور وُوله هجرانه فګار

شکر حق راکه باز آمد یار

سرو سرکوز له انفعاله کاندي

چون خرآمد بسوئے باغ نګار

خوک به لاله دَ (دیار) مخ کا مخې

آن سیه دل وآن رخسار

په موافقت دَ محبّت شي عتاب

مشواز جور یار خود آزار

متحیر ئې په لید ودَجال

هم خوبان چو صورت دیوار

خو اتصال دي دَعاشق شي نصیب.

خواه در باغ خواه بر سر دار

باغ وشاهد بنه بنه یاران موجود

خیز ساقي شراب ناب بیار

کوره بیا کله رالیشي هغه وخت

که نهم لب بلب شکر بار

نور دَ زړه مراد عبدالقادره پریږده

ګر بیابي مراد دل این بار

دَده یوه یوائې دَ فارسي غزل به دلته بې خونده نه وي.

چه دیر صوتیت و موسیقیت پکښې دی۔ ھ

چو زلف عنبرین را پیچ خم کردے کرم کردی
دلم را از سر نو بند غم کردے کرم کردی
چو بکشودی نقاب از رُخ نمودے عارض زیبا
شب اندوه ما را صبح کردی کرم کردی
بحمد الله چو قلم را بدیگر کس نفرمودی
سرم را چون بدست خود قلم کردی کرم کردی
بروی عاشقان زاد عمرت
جفا ها گفتی وجور و ستم کردے کرم کردی
سراسر محنت و غم بود در ملک وجود ما
چو بازم ساکن ملک عدم کردی کرم کردی

عبدالقادر خان دا اوږده ردیف غزل لیکلے - دا خصوصیت دا ارد و نیه پخوانی شاعر شاه نصیر دهلوی کی ډیر وُو- چه د آتش و آب و باد و خاک "او د یورپ پچهم، اتر دکهن" ردیف، غزلے جوړے کړې دی - د عبدالقادر خان د داسې غزل دوه درے شعره دا دی - ھ

عشق د کل بلا وُسر دی خدائی ځوک په اخته نه کا
هغې د غم لښکر دی خدائی دی ځوک په اخته نه کا
له وطنه سرې ورک کا و عالم وته یې سپک کا
دا همه د ده اثر دی خدائی دی ځوک په اخته نه

عبدالقادر خان یو بل صنعت هم استعمالوي چه لفظه د موقعي توري په هجا کې لیکلے دئ لکه دا شعر یې ؎

لاله و شه حرف مکرر
که مومن یې په حا قاف (حق)

دئ د کښنیو بحر وغزلي ډیرے جوړوي چه ډیر تاثیر لري - لکه د اردو میر تقي میر غزلي -

عبدالقادر خان د رعایت لفظي او د تجنیس د صنعت ډیر شوقي دئ - او مثالونه یې دا دي (په تجنیس کې توري یو او معنے یې جلا وي)

بیا مې شو نارو غمونه په زړه نوي
چه د یار په بورجل رابشم یار نه وي
که ګلاب لکه باران وربانډې اوري
د ګلابو بوئ به لا هر نه شي له اوري
نه یو اځې د لاله په تن ترکې دئ
په دا باغ کې چه چې کې د ګل هغه کې دئ

په دې پوره شعر کې هم رعایت لفظي دئ او هم تجنیس اول کې "داغ" دویم "کې غم یا داغ" - او د رحمان بابا، خوشحال بابا غوندې -

عبدالقادر خان هم درے درے شیان بیان کړي دي.

لکه دا شعرونه - ؎ چه حجاب تر منځ زما زوما دئ
اول زه دوهم عالم دریم سبب دئ

چہ سری پرے دوستے دشمن وتہ عزیز سے
اول حلم دوهم جود دریم ادب دی

چہ مطلوب تہ رسوی عبدالقادرہ !
اول صدق، دوهم شکیب دریم طلب دی

چاپ سوی "اولس" میاشتیزہ کوئٹہ اگست ۱۹۷۴ع
ستمبر ۱۹۷۴ع او "بولان" میگزین کالج گورنمنٹ کالج کوئٹہ

۷۷ — ۱۹۷۶ع

# اشرف خان هجری

## او دَ هغه شاعري.

هسې خو دَ خوشحال خان جنت مکان دَ کورنۍ ټول

غړي په پښتنو کې دَ خپلې دلاورۍ ورزوړتيا . ښوالې، سپېڅلتيا

لياقت، وقابليت شعر وادب . او شرافت ودين دوستۍ له کبله

مشهور او نامدار تېر سوي دي - يعنې

اين خانه تمام آفتابيست

خو په دوئ کې بيا په تيره دَ خوشحال بابا دوه نامتو

زامن يعنې عبدالقادر خان ختک او اشرف خان هجري چه دواړه

صاحب ديوان شاعران دي - دَ دَه لمسۍ يعنې دَ اشرف خا

زوئ افضل خان ختک چه دَ "تاريخ مرصع" ليکونکی دی - دَ ده

کړوسۍ - يعنې نازکخياله شاعر کاظم خان شيدا دَ افضل خان

زوئ دی - ښې ډير نامتو او پياوړی تير سوي دي . دلته

بالموږ دَ اشرف خان هجري پر ژوند او شاعري باندي يو څه دَ رڼا

اچولوزیار کاروو چه نسبتاً غیر معروف دی - او پر شاعرئ باندی خوئ ماتراو سه پوری بشپړه تنقید یا تبصره نه ده کړې -

محمد اشرف خان خټک چه تخلص یې هجری دی - د ستر خوشحال خان مشر زوئ دی -

صدیق الله رښتین چه د کابل پوهنتون لیکوال دی -
په خپل کتور کتاب "د پښتو ادب تاریخ" کی لیکی چه د ده د زوکړې نیټه ۱۰۴۴ ھ ده - دی هم د خپل تور زنی پلار غوندی توریالی پښتون او سوچه ادیب دی - په خپله خوشحال بابا د ده د توری او مړانی ډیره ستائنه کړې ده - د خپل پلار غوندی اشرف خان هجری او عبدالقادر خان خټک هم د مغولو بندوړی وو - دی چه کوم وخت اورنګ زیب عالمګیر دکن له بوت او هلته یې بندی کړ - نو د اشرف خان د طبیعت زور او د شاعرئ درزا ښکاره سوه - په بندکی د ښکلو سپیلو یاد - د ده سات تیرئ وو - د جیل په تورو تاریکوکی د هجری د سوی زړه کوکی دا رنګه د شعر په جامه کی ښکاره کیږی -

قاصدان له رو ونه راځی مرت سو

سلام باد را رسوی منت یې کم دی

دا د ۱۰۹۳ ھ کال وو چه اورنګ زیب عالمګیر هجری د دکن بندی خانی له واستاوی - دلته دا یاد لرل پکار دی چه د هند استری لوئ مغولی باچا اورنګ زیب د خپل

عمر او د خپلې باچهۍ آخرې پنځه ویشت کاله یعنې د ۱۶۸۲ع نه تر ۱۷۰۷ع پورې په حیدر آباد دکن کې تیر کړو۔ ولې چه دې د هندو مرهټیانو او د بیجاپور او ګولکنده د شیعه باچهانو په خلاف جنګیدې۔ دا ځکه ګوا دا وخت د دې پایه تخت دکن وو۔ نوې هجرت هم د ځانه سره دکن له بوتے۔ او هلته یې بندې کړ۔ او رنګ زیب د خوشحال خان د زور ماتولو د پاره په خپله په ۱۶۷۴ع کې حسن ابدال له راغلې وو۔ او په زور و په جنګ نه په پیسو او په چم یې پښتانه سره خواره واره کړې او شلولې وو۔ بیا یې خوشحال و زامن عبد القادر خان و اشرف خان قید یانې کړو بوې تلو۔ خوشحال خان خټک خپل بې ننګه زوې و اورنګ زیب ته په لاس ورکړې وو۔ نو کوم وخت چه هجرت د خپلې ښې او خږې پښتونخوا نه جلا کیدې۔ چه هغه وخت به یې زیاتره "روه" ورته وایه نو زړه یې ډیر ورته چک سو۔ او د نامیندې و خوابدې چیغې یې د شعر په لار د اسې پورته سوې ؎

ما هاله ماتم د ځان وکړ په وینو
چه اټک ورته می شا کړه په ژړا سوم

اوس به څه د وطن کانې بوټې ژاړم
د رخصت سلام می وکړ ترې جدا سوم

یو ناوک می په دل لګ راوړله روهه

خار وجار می د باغ ونه کړ خطا سوم

شین فلک په خندا سور سوله هوسه

چه هوږک جبل په مخ زه ورته شا سوم

یو پار و په دکن نشته چه می دم کا

ګرفتار په کنجوکا و دا اژد دها سوم

د هوسی په ښکر برات د وصل وسو

چه راپوری په ندی د نر بدا سوم

بیا د هجر بیان کوی او وائی -

نن په څه له هجره راز ګوم وچپا سته

ما په خپله غم خرید کړ چه اشنا سوم

په دا غزل کی د ده خپل تخلص یو ائی خټک راوستلی دی او وائی -

زه خټک د یار طلب کړ موندہ نه سی

که نا کامه یی له غم سره ملیا سوم

بنا غلی رښتین لیکی چه "هجری" د سپین زیر توب په وخت په ١٠٥١ھ کی د بیجاپور په لار کی وفات سوی دی- وائی چه افضل خان بیا د ده مړی له بیجاپور څخه راوړاو په سرای کی یې دفن کړ" بیا رښتین پر مخ لیکی - هجری د خوشحال خان په مکتب کی د لوړ مقام څښتن دی - د شعر یو دیوان

ئې درلود ۔ مګر نسخې ئې کمې پیدا کیږي ۔ وائي چه یوه قلمي نسخه ئې
په برټش میوزیم BRITISH MUSEUM کې سته د هجري څه اشعار
چه لیدل شوي دي ۔ هغه په عشقي ۔ اخلاقي او وطني خواؤ
کې دي ۔ د رښتین د دې مضمون په لاندېني حاشیه کې ئې
لیکلي دي چه په پیښور کې د فتح محمد خان خټک سره هم
د هجري د دیوان قلمي نسخه سته ۔ زه (راقم الحروف) وایم چه
دوه کاله به کیږي چه د پیښور د یمې ننګیالي شاعر او پیاوړي
ادیب همیش ګل همیش خلیل د هجري دیوان مرتب ۔ چاپ
او خپور کړی دی ۔ خو دا دیوان زما په مخ کې نه دی پروت
چه ده د کومې قلمي نسخې څخه دا دیوان چاپ کړی دی ۔
کیدائ شي چه د فتح محمد خان د نسخې څخه ئې چاپ
کړی وي ۔ یا یوه بله نسخه په لاس ورغلې وي ۔

نو معلومه شوه چه د هجري ټول عمر (یو شپیته) کاله
ؤو ۔ او آخري کلونه ئې د مرګ تر ساته پورې په بندي خانه
کې تیر کړي ؤو ۔ او بیا ئې مرګ د قید څخه خلاص کړی
ؤو ۔ یعني د مغولو او د بدن د دوارو د قید څخه ئې روح خلاص
شوی ؤو ۔ د ده د ژوند نور اړخونه لکه د ده تعلیم خوبونه کړه وړه
ودرخته ۔ تصنیفات او دا امور تر اوسه نه دي معلوم ۔ خو د شاعرۍ
څخه بنه لوستی سړی معلومیږي ۔ خو د عبد القادر خان
غوندې علمیت او د کاظم خان غوندې شعریت د هجري

دَ کلامه څخه نه څرګندیږی. لکه څنګه چه ما د مخه وُویل دَ همیش
خلیلَ چاپ کړیُ دَ هجری خټک دیوان ماتر اوسه پوری نه
دیُ لیدلیُ. له ما څخه دَ پیښور چاپ یوُه زړه نسخه ده چه
په هغه کی دَ پښتو دَ نامتو شاعرانو لکه خوشحال، رحمٰن بابا
عبدالحمید، عبدالقادر خان او کاظم خان سره سره دَ اشرف خان
چوړ سوی غزلی هم سته. داوخت چه زهٔ دا مضمون لیکم
زما په مخ کی دَ اشرف خان دَ کلام دغه نیمګړی چوړ (انتخاب)
پروت دیُ. زهٔ به زیار باسم چه دَ دهٔ دَ دی لنډ غوندی کلامه څخه
دَ دهٔ دَ شعر خواص اَو دَ دهٔ دَ شاعری ماهیت معلوم اَو څرګند
کړم.

موږ ګورو چه دَ رحمٰن غزل سراسر سوز و ګداز، اخلاق
اَو تصوّف، حقیقت و معرفت او سادګی و واقعیت ده. دغه رنګ
موږ وینو چه دَ خوشحال شاعری رزم و حماست، اخلاق و نصیحت
پښتو ننواله او پت ده. او دَ عبدالقادر خان شاعری کی یوه
خوات دَ خپل پلار لار و چیر رنګ لری. نو و بله خوات تر خوشحال
زیاته دَ رحمٰن څخه متأثره ده. دَ رحمٰن سوز و سادګی او دَ خوشحال
سپینه وینا و علمیت دَ عبدالقادر خان خټک خپل رنګ دیُ.
لکه څرنګه چه دَ دهٔ دَ کورنیُ دَ مکتب شعر تقاضا ده. دَ هجری
شاعری هم چیر غله دَ خپل نامتو پلار دَ رزمیه او وطنی رنګه چیر
لری. دَ دهٔ دا رنګ دَ عبدالقادر خان تر داسی رنګ زیات

دئ ـ دَعبدالقادرخان په شاعرئ کې که دَتصوّف عنصرډیردئ نو دَهجرئ په شاعرئ کې ساده عشقي رنګ ډیردئ ـ دارنګه دَدهٔ کلام وعبدالحمید مهمند ته لږ ورنږدې کیږي ـ دَخوشحال غوندې هجرئ هم دَخپل وطن پر کامونوبونو مین دئ ـ اود هغو پرېتوله سرسبزئ اوآبادئ باندې دَخپل وطن سپیره او وچ غرونه اودَخپل وطن سوړ باد اوسرې اوبه نه ورکوي ـ

دَهجرئ خوښ اوغوره مضمون لکه څنګه چه دَټولو شاعرانوخوښ دئ ـ دَعشق مضمون دئ اوبیاپه نغمه کې دَخپل تخلّص په مناسبت سره دَهجروفراق اودَوصل وبېلتون خبرې ډیرې کوي ـ خودَدهٔ داسې عشقیه اشعارپه خپله لمن کې سلاست اوساده توب لري ـ نه داچه پیچیدګی اومشکل توب په دې لاندېنیو اشعاروکې دَدهٔ داسې رنګ په ښه توګه ځلیږي ـ

ه

لکه توره دَیارهجرکړه په ما ورځ
په حیاورمه سه هسې سیاه ورځ
لکه زما دَوصال وارد هیچانه که
آخرشپه دَهجرهم سې مجلا ورځ
دَشباب دَبهار ورځ ترګلو ښه وه
ولې نه وه چندان هسې بې وفاورځ
یاره راسه په دیدن مې مشرف کړه
حق پیداپه جهان نه کړه دَبقاورځ

ته چه تل وعده د وصل په فردا کړے
کوره کوم مخ تولید کاندی صبا ورځ
خو آخر به لکه باده سے ماضی شی
داچه وینم د فرقت بے سرو پا ورځ
غم بنادی د گردون تل په قرار نه وی
خو به تیره سی هجرے دا د جفا ورځ

هجری د دنیا د بے ثباتئ او د ژوند د بے وفائی حال ډیر ښه بیان کړے دے۔ دے د دے اصول ډیر پابنده معلومیږی چه که څه کوے نو یے لا اوس کوه۔ او وصبا ته یے مه پریږده کوره چه صبا لا څه پیښیږی۔ دلته هجری د شاعرئ دغه فلسفه د فارسے د نامتو مجازی شاعر عمر خیام نیشاپوری و فلسفه ته ورنږدے کیږی۔ چه هغه د پرون او د صبا یاد نه کوے۔ او د نن او یواځے د نن خبرے کوی۔ لکه چه وائی۔

روزے که بگذشت ازو یاد مکن
فردا که نیامده است فریاد مکن

بر رفته و نیامده بنیاد منه
حالے خوش باش و عمر برباد مکن

د دنیا د بے ثباتئ او مرگ فلسفه داسے بنئ او وائی۔

په دنیا کے پیدا نه کا هیڅ گلزار مخ
چه خزان یے زخمی نه کا د سنگار مخ

چه معیوب په خط و خال د فنانه وی
ماونه لید په دنیا هسې هموار مخ
باقي ګل په باغ د دهر موندې نه سی
ځکه تل په اوښکو تر وی د هزار مخ

د دنیا اهمیت څرګنده وی او وائي - ۵

د دنیا کار طمع هر ګز په ثبات مه کړه
ثبات ګوره نه وید اسې د کوم کار مخ

بیا وائي - ۵

راسه زړه د ختک وګوره په مینه
چه هر تورې یې لرې د غم پرېهار مخ
هیڅ باور په رفاقت د عمر نسته
هجرت هر نفس په ځیر ګوره د یار مخ

هجرت د زمانې د کږدو څخه په آه و بکا د ځې او داسې ځیني تأثرات څرګند وي - ۵

غم بنادې د جهان باد کنه یا کرد
په دانه لرې پروا آزاده مرد
آمد شد یې تر ثباته کړنده دی
تجربه مې کړل د دور ګرم سرد
هیڅ هوس د زمانې ونوان ته مکړه
یوه لقمه بې غمه نه لرې د خورد

دے وائي د آسمان څرخ د شطرنج و د تاش چل دے ۔ چا ته ګټه
ورکوی ۔ چا ته تاوان ۔ سرو برېئ نه دے معلوم ۔ ؎

په څو رنګه نقش پیدا په یوه دم کا
د فلک دورونه تاش ګټه د نرد ه

په پائے کې وائي ۔ ؎

هجرے به عمل ترشاخ په صفا کړه
چه په ورځ د محشر نه سے کونه زرد ه

هجرے د خان او د خپل یار موازنه او مقایسه تر له کوی.
او د اسے ګویا دے ۔ ؎

هرګز مه سه ستاله حیله زړه زما سره
لکه نه سوله جورو نو خاطر ستا سره
نه زما خاطر هرګز له وفا سوره سو
نه ستا خوئے سو په دُنیا کې له جفا سره

د وامق او د عذرا "تلمیح داسے راولی ۔ ؎

د سود پند ورته نعیش کړے واعظانو
وامق " پند د هیچا نه کا له عذرا سره

د وصال تشبیه داسے وائي ۔ ؎

ستا په دیدن سوئے زړه هسې تازه سی
خو ربحان کاندی وهلئے د ګر ما سره

بل مثال وائي او بنه زوره معنی بیانوی ۔ ؎

دَ وصال اُمید می تاؤ دَ هجر سور که
او تبجب هیش خُوله که دَ شفا سَرد

دئ وائي زمایه زړه کې چه دَ هجران کوم تاؤ او اور وُو هغه هغه پهٔ دے امید سوړ سو چه څوندے یار به وُوینم - دا داسے مثال لري لکه تبجب سړے چه خولے وکے - نو صورت یې سوړ سے - څوا دا خُوله دَ شفا خوله وه - اوس به یې بدن سوړ سي - او شفا به وموی - دَ هجران سختکي داسے بیانوي -

په هغه جهان کافر په آتش سوځي
هجرلې کا په دنیا زمایه ځان اور

دئ وائي که دَ هجر غم نه وائ قید و بند ډیر راته آسانه وُو - نو داسے وائي -

که دَ یار دَ هجر غم را باندے نه وائ
راته سهل وُو سړیو دَ زندان اور

هجرته وائي چه زړهٔ هر سمار په بندے خانه کې وظالم تهٔ ښنرا کوُم - مګر خبر نه یم چه دا ولے تراو سه پرده باندے اثر نه کوی - دَ دهٔ اشاره وا ورنګ زیب ته ده - دئ وائي - ھ

لا تاثیر په ظلم نه که څه سبب ده
دَ هجرے په هر سحر لوی دهان اور

هجرته وائي چه دَ عشق درد دَ هو ښیارا وپوه سړے دَ پاره یو لوئے نعمت دئے او هغه دا نعمت په یوهٔ شے نه بدلوی - دئ وائي -

یوه به درد دَ عشق بدل پہ دوانه کا
هرگز نه سه له دے غمه زړه دَ حیا روغ

دَ یوه غم نه وُوجوړ چه بل پرېلیږي سُو - دا خبره داسې بیانوي

بل فګار یٔ تورو زلفو په سرکیږسُوو
زړه مې نه وُوله یوه غمه صفا روغ

دَ عاشق او دَ معشوق تضاد او وائي - ه

په ازل چه یٔ جفا ونبکلو ورکړه
بیایٔ زړه کړ دَ درد منوله وفا روغ

دَ "نن" اهمیّت څرګند وي او وائي - ه

نن یٔ زړه په عنایت دَ بوسې ښه کړه
په وعده به بچري نه سي دَ فردا روغ

دَ عشق دَ درخت میوه دا رنګه ښائي ه

په ازل چه دَ یارۍ ونه خلقت سوه
خاصیّت یٔ دَ هجران ثمر پیدا کړه

دَ هجر مضمون په بیا بیا وائي - ه

ما به څوړ ثمر دَ هجر بې ګمانه
چه په باغ مې دَ یارۍ نهال بناکه

نهایت یٔ دَ هجرت په توره غوښ کا
دَ چا زړه چه یٔ په ښه مخ مُبتلاکه

هجرت ازیاتې دیٔ چه تر او سه یٔ لا هم ونه څرګنده دی

تور سکاره سوی - ولی چه دَ هجران زور ورغم باندی سپورۍ دۍ -

دَ هجران اندوه چه نه دی سکاره کړی

دا هغه ونه مې دَ تن مکر روئیږی سول

دَ اشرف خان دَ اشعارو څخه معلومیږی چه فارسی او عربی تحصیلات یې بنه کړی دی - دۍ د فارسی او دَ عربی توری په خپلو شعرو کې راوړی - لکه دا لاندی شعر یۍ - ه

یاره راسره په یوه وطن ماوی کړو

له خاطره مبرا او بۀ ده رجا کړو

دَ دی غزلی په دا نورو شعرو کې دَ غم او دَ خوابدۍ یو مسلسل او برله پوری تأثر او آهنګ دۍ - چه پرزړه ډیره اغیزه اچوی -

راس په راس به سره کړو غنیمت دۍ

صلاح نه ده چه دَ تن طمع صبا کړو

له ازله شیی سپهر جفا کار دۍ

خطائی ده که تن موږ طمع وفا کړو

څو یاران لکه رمه هسی غنچه وو

دَ هجران لیوه په زور سره جدا کړو

مجلس یارانو کوچ وکړ له دهره

موږ به څو حیات آخر په دا فنا کړو

څوک به څر ننګه امید تری دَ عیش کاندی

په دادا ریې همه غم له ره پیدا کړو

په آخر کې د اورنګ زیب باچا د ظلم شکایت کوي - چه دی يې
له خپله یاره جلا کړ - ھ

یاره ته به هجرې پرې نه شوې پاړونه
په ستم سره بیل جور د باد شاه کړو

د هجرې ورے غمنا کو ناروا او دردناکو سر و ته چه موږ
ګورو نو وده ته د پښتو فانې وسیلاے سو - دا ردو نامتو او پښتنے
نسله شاعر فانې بدایون هم تپولی د مرګ و د غم او د انسان د ناوسی
خبرې په خپله شاعرۍ کې کړې دي -

د هجرې په شاعرۍ کې تر ټولو لوئ او اهم مضمو
هغه د هجر او د بیلتون مضمون دئ - دویم مضمون يې د پردیسی
د اور سیل دئ - دئ وائې - ھ

هجره څه خو فرصت را زره مې پاره سو
سرې لاندې ستا د جور په اره سو

د دکن د پردیسۍ حال وائې - ھ

راسره یوځل خټک ګوره په دکن کې
چه د هجره ویر ناخیز لکه زره سو

د یار یاد لیوه او
خاورې بولي او وائې - ھ

هر ساعت يې په ستم ددار ولنسی
د یار یاد لکه لیوه هجرې بره سو

لکه څنګه چه د مشرق شاعرۍ قاعده ده یا لکه څنګه چه

د پښتو د لویو او لومړیو شاعرانو طریقه ده - دوی په خپله شاعرۍ کې تصوّف ډیر وائي - د تصوّف یوه برخه اخلاق هم دی - نو د تصوّف شاعران اخلاقي شاعري هم کوي - اوس که عبدالحمید مهمند شاعري چه د مجازه ماسیوا نوره ټوله اخلاقي شاعري ده - عجبه خو دا ده چه هجري د ستر خوشحال او د فقیر رحمان د سیمې او د وخت پر شاعر کیدو نه یې د تصوّف او د اخلاقو خواته چندان توجه نه کوي - او یوازې د مجازي عشق سندرې وائي چه زیاتره یې خوندور دي - مګر یوازې په تصوّف یا په سوز و ګداز یا په زور تخیّل خوند و رنګ پیدا کوي - خو هجري دا درې ښیان نه لري - بیا هم هجري د هجر و د وصل او د دنیا د بې ثباتۍ په لړ کې کله کله ښه مضمون یا ښه شعر او باسې دی وائي - ۵

جدائي له یاره یو نفس ماتم دی

چه فرقت سې په کالونو خو ستم دی

بې وطنه تنها پروت یم په غربت کې

نن له ماسره همدم د صنم غم دی

۶ - یاد ماضی عذاب ہے یارب

دغه مضمون هجري په دې شعر کې بیانوي او وائي -

هیڅ حاصل مې بې دریغه څخه نشته

ګذشته چه یادوم سودې الم دی

بل ځائې یو داسې شعر وائي چه غالب هم لعنی یو

شعر ویلی دی۔ ؎

که بهښت له ښائیسته مخه خالی وی
عاشقانو به یاد کله کړ قسم دی

دَ غالبؔ شعر دا دی۔ ؎

وه چیز جس کیلئے ہو ہمیں بهشت عزیز
سوائے بادہ گلفام و مشکبو کیا ہے

بل ځائے یوه مصرع ئے ده چه ؎

جنت میں یہ حسین کہیں نہ ہوں

بیا آس بولی او وائی۔ ؎

دَ هجری دارو به تا نه سی طبیبه
دَ فرقت آس ئې پرزړه الیبنی قدم دی

دَ تجربے خبره کوی او وائی۔

دانائی که دَ جهان له کاره سړه دی
چه الم ئې لکه باد خوښی ئې دړه دی
آه سوزی باطل مه ګڼه درویشه
ستړی هله کی ژړا چه زړه په درد وی
هغه مرد چه په دغه سود و سودا کا
په مجلس چه دَ حق وړسی مخ ئې زرد وی

دَ ځان ستائنه کوی او وائی۔

دا محال دئ چه شاعر به په پښتو کې
بې هجرے غوندې په فن دَ شعر فرد وي

دَ دُنیا مثال ورانده کوي او وائي - ه

سراسر واړه له خرمې کا ذبان دي
چه تول سوي دَ فانې دُنیا په خوان دي
دَ جهان مثال دَ کان دئ دَ نباتو
طالبان ئې بې شخه مې شماره مچان دي

دَ غرض یارانو حال داسې بیانوي - ه

هیڅ باور ئې په اظهار دَ اخلاص مه کړه
په دروغ تیتال کوي دَ ښې یارانې دي
دَ بنا دئ په ورځې لا ئې دَ وفا کا
چه یوه ذره سختې سې کریزان دي
دَ زړه ستر کې په مطلب ظاهر لباس
په سوګندئې غرور مه کوه تکان دي
دَ صادق اشنا خواهش په جهان مکړه
بیران دَ زمانې واړه دور نکان دي
دَ قیامت ورځ لا په ستر ګو لیده نشي
نن مې ولید نغله کار نعمه دَ ځان دي
ما هر ګز راستي له چا لیدلې نه ده
برادر که یار و خویش که عزیزان دي

زۀ هجرې چه په اسرار د کار خبر سوم
په دنیا ارتینې ډیرې لږ مردانې دي

چاپ سوې میاشتینزه "اولس" کوټه جون ۱۹۷۴ع
او بولان میګزین ګورنمنټ کالج کوټه.

۱۹۷۳ع ——————

# موشگاف عبدالحمید

## او د مغه نازکخیالي

عبدالحمید حمید چه د مهمندو د پښې ماشوخیل څخه او د مشهور زمانه پښتو شاعر عبدالرحمان بابا هم قوم او د دوولسمې هجرې پیړۍ شاعر دی - د هند د محمد شاه رنګیلا باچا هم عصر او یو ډیر نازکخیاله شاعر دی - د پښتو نازکخیاله شاعران دري دي. کاظم خان شیدا، عبدالحمید مهمند او مرزا خان قندهاری د عبدالحمید د ژوند حال او د زوکړې نیټه په کره توګه نه ده معلومه - دلته قیاس وانټکل زمونږ کومک کوي - یا د ده خپل څه اشعار د ده د ژوند پر یو څو اړخو باندې رڼا اچوي - ډاکټر سید انوارالحق د "دُر او مرجان" په مقدمه کې لیکي چه د پیښور د ښاره څخه د قبلیځ سهیل و خواته اته میله لرې د بډه بیر کلي ته نژدې د "ماشوخیلو" په نامه یو کلی دئ چه د عبدالحمید ماشوخیل مولد ، مسکن او مدفن دئ - دلته د ده قبر په وران او خراب حالت کې اوس هم موجود دی - عبدالحلیم اثر افغاني د باجوړ

په خپله یوه مضمون کې چه په اوسنیو شپوکې د کوټې په اوږه ورځنۍ "هیواد" کې چاپ سوی دی - دا ثابته کړې ده - چه یوه پښتو شاعر هم د عبدالحلیم په نامه په مهندو کې تیر سوی دی - خیر خو زموږ له هغه سره کار نشته - زموږ کار د هغه عبدالحمید سره دی - چه د "دُر او مرجان" مصنف دی - او چه موشګاف او نازکخیاله دی - عبدالحمید یا حمید بابا د محمد شاه مغولی باچا په وخت کې وو - ځکه خو وائي - ؎

چه د ښکلیو د درګاه ګدائي مو دی

هې تو به د محمد شاه د سلطنته

د حمید بابا د شاعرۍ د شهرت زمانه د ۱۱۳۰ھ په شاوخوا کې ده - یو ځائ په خپله دیوان کې وائي - ؎

له هغه چه پوهیدلی په ښه بد یم

رسیدلی د پنځاه و پنځ ترحد یم

یعنې دا شعرئې د پنځه پنځوسو کالو په عمر کې ویلي وو - بل ځائ د خپلې زړه تیا و خوانه دا سې اشاره کوي - ؎

چه پیری مې زیږه سپینه کړه مړا غبرګه

بویه قد د سرو قد عصا تر تخرګه

بل داچه ؎

سپینې زیرې زما عشق کوته روپۍ کړه

هیڅ ئې نه قبلوي ښکلي په سوداکې

دَ دهٔ دَ یوهٔ بیتِ نه څخه دا هم ثرگندیږي چه دَ هند مغول باچا اورنگ زیب عالمگیر دَ دهٔ دمخه مړ سوی دی - هغه شعر دادی -

څه به شور نه وي دَ هند په میخانه کې
چه اورنګ څخلی دَ عمر جام لنګو رسو / ۱۱۱۸ھ

ډاکټر سید انوار الحق وائي چه په دا تاریخ کې چه مطابقت را وستل سي - نو دا تخینه لګیږي - چه عبدالحمید مهمند په ۱۰۷۵ - ۸۵ ھ کې زوکړی وُو - په ۳۰ - ۱۱۳۷ ھ کې ویاخه عمر ته رسیدلی وُو - او بیا په قول دَ راورټي انګریز په ۱۱۴۵ ھ کې دَ کم و زیات او یا (۷۰) کالو په عمر کې وفات سوی وُو" خیر مونږ داوُ یلای سُو چه تر ۱۱۳۷ ھ پورې دَ حمید بابا ژوند یقیني دی - ولې چه په دغه کال دهٔ خپل کتاب "شاه و ګدا" چه په مثنوي کې دی - پوره کړی دی - او دَ تکمیل تاریخ یې دا سې لیکلی دی -

ھ چه په زړه کې مې لړم دَ دې فکرت وُو
یو زر سل او وهٔ دیرش کاله دَ هجرت وُو / ۱۱۳۷ھ

راورټي خدای خبر چه په کم سند سره دَ عبدالحمید دَ مرګ نیټه ۱۱۴۵ ھ برابر دَ ۱۷۳۲ ع لیکي - کیدای سي چه دهٔ په یوه کتاب کې داسې لیدلي وي - یا یې دَ عبدالحمید دَ خپلوانو او نمسیانو څخه دا معلومه کړې وي - دَ دهٔ ماخذ نه دی معلوم خو دی دا خبره په قطعیت سره کوي - یوهٔ عجبه خبره دا ده چه عبدالحمید مهمند دَ رحمان بابا دَ زمانې یاد دهٔ دَ آخري شپو

دَ زمانے سرہ معلومیږی - خو یوه دَ هغه بل نه نوم اخستے دے - او نه یے بل د اسے څه اظهار کړے دے - دَ دے سبب زما په خیال سره دا دے چه دَ رحمان بابا په شاعرۍ کے معاصرتے (دَ خپلے زمانے خبرے کول -) بیخی لږ دی - دا میدان دَ خوشحال او دَ عبد السلام اشیزی دے - بیا هم رحمان بابا دَ خوشحال و دولتا او دَ عزیز خان او دَ ملنګ عبد الرحمان او دَ کور و کور و پیښور دَ دے وار و خبرے کوی.
خو عبد الحمید نه دَ ځان له خوا څه نیزے اَو نه دَ بل له خوا څه وائے - یوا ځے دا چه دے نسته په پښتو کے څوک حریف او دا چه شمله سو دَ تمام سریږی -" نو دا څه عجبه نه ده چه کوم وخت رحمان بابا سپین ږیرے وُو - هغه وخت دَ حمید دَ ځوانۍ شپے وے - او دوی به یو و بل سره پیژندلے هم وے - رحمان بابا خو په دے دَ حمید نوم نه وے اخستے چه ترځانه یے کم بالے، خو حمید کوره چه دَ څه سبب دَ رحمان بابا نوم نه دے اَخستے -

هسے خو دَ عبد الحمید ماشوخیل شاهکار دَ ده دَ پښتو شاعرۍ دیوان دے - چه دَ "دُر او مرجان" په نامه سره هم پیژندلے کیږی - خو دوه کتابونه یے نور هم لیکلے دی - هغه هم په شعر کے دی - یعنے مثنوی ده - په پښتو کے عبد الحمید ترټولو لوے مثنوی ګویه شاعر دے - دَ غسے خو عبد القادر خان خټک او کاظم خان شیدا هم وړے وړے مثنویانے لیکلے دی - خو دَ حمید دا دوے مثنویانے جلا جلا په کتابی صورت کے دی -

په دے کې لمړۍ کتاب، قصّه دَ شاه اَوګدا" ده۔ دا قصّه په فارسي کې
هلالي لیکلې ده۔ اَو عبدالحمید دَ غلام محمّد اخونزاده په وینا په پښتو
مثنوي کې ترجمه کړے ده۔ اوس دا مثنوي ښاغلي هیٔښ خلیل
چاپ کړے او خپره کړے ده۔ دویم دارنګ کتاب دَ مولانا غنیمت
کشمیري مثنوي " نیرنګ عشق" ده چه دَ عزیز او دَ شاهد دَ عشق
(رومان) قصّه پکښې ده۔ اَو عبدالحمید ئې په پښتو مثنوي کې ترجمه
کړے ده۔ دیوان عبدالحمید یو وار د مخه چاپ سوے وُو۔ خو صحیح
ځائے او دَ چاپېدو تاریخ ئې نه دے معلوم۔ دریم وار مُلا عبدالغفار
قندهاري غالبًا په ۱۳۳۱ھ کې په لاهور کې چاپ کړے دے۔
دریم وار ښاغلي صدیق الله رښتین دَ پښتو ټولنې کابل له خوا
دَ خپلې مقدّمے اَو تصحیح سره چاپ کړے دے ۔ څلرم وار دَ ښاغلي
ډاکټر سیّد انوارالحق دَ مقدّمے او تصحیح سره په ۱۹۵۸ع کې
یونیورسټي بک ایجنسي پېښور چاپ کړے دے۔ دَ دیوان
عبدالحمید ټول شعرونه ۲۶۰۱ ته رسیږي۔

دَ حمید شاعري دَ حسن اَو عشق شاعري ده دَ دې
دَ وُو تورو تفسیر دَ دهٔ ټول دیوان دے ۔ او عشق یې هم
حقیقي نه بلکه مجازي دے۔ دَ دهٔ دَ شاعرۍ تر ټولو لوئے
خصوصیّت نازک خیالي مضمون آفریني او دقت پسندي ده۔
چه دَ عُرفي شیرازي صائب تبریزي او بیدل طرز دے ۔ دَ
نازک خیالۍ مطلب دَ لیرے ځائے خیال جنګول۔ خبره پر یو

داسې عجیبه طریقه بانْدې کوُل چه دَ سرِشاعر یا دَ هر سړی بام نه وی، ورته
اوَخبره په ناولده طریقه سره کوُل او بیخی نوی اوَ تازه اِستعارې
اوَ تشبیهات اِستعمالول دی - ودې ته موشگافی هم وائی یعنی
بېښته څله څیرل یعنې باریکه او نازکه خبره کوُل، چه کوُل
ئې ډیر گران کار دئ - په دغه سبب وَ **عبدالحمید ته** راتلونکو
شاعرانو او نقادانو بیل بیل لقبونه ورکړی دی - څوک دَ پښتو
بیدل ورته وائی - اوَ څوک سعدی - څوک لا دَ پښتو فردوسی اَو
نظامی هم وَرته وائی - خو زمَا په خیال سره دا او رښتیا دوَه لقبونه
هم نه دی - ولی چه فردوسی او نظامی دواړه رزمیه او حماسی
(دَ جنګ اوَ دَ بهادری) شیان وائی - او دَ حمید کلام دَ دې شیانو
څخه یو مخ خالی دئ - هاں البته خوشحال خټک جنګی زمزمې
او حماسی ترانې وئیلی دی - دا دَ هر چا خپل خپل رنګ
وی - او چه دَ دوُو شاعرانو رنګ اوَ طرز سره وَرته یا سره نږدې
دی - نو یوُه وبل ته تشبیه ورکول کیدائی سی - او س
خوشحال دَ جنګ خبری کوی - رحمان بابا دَ عشق حقیقی، حُسن
اوَ اخلاقو خبری کوی - او عبدالحمید دَ حُسن مجازی خبری
کوی - نو دَ دا دَرې وُړ رنګ یو دَ بل څخه جلا دئ - دَ عبدالحمید
رنګ دَ فارسی وفغانی - عرفی - صائب - او بیدل ته سوئ دئ
عبدالحمید مهمند په پښتو کې دَ یوه جلا او نوئ مکتب فکر
**یا سبک** "تیزه و هونکی ربانی) دئ چه هغه موشگافی، نازک خیالی

معنی آفرینئ او مشکل پسندی ده - تر ده وروسته بیا د خوشحال خان خټک کروسی د اشرف خان خټک لمسی او د افضل خان زوی - کاظم خان شیدا هم د دې مکتب شعر پیروی وکړه - او ډیره ترقئ ئې ورکړه - په قندهارکی د اطرز مرزا خان قندهاری خوښ کړې - او دائې د خپلې شاعرئ رنګ وګرځاوئ - د د غه نازک خیالئ په سبب سره عبدالحمید مهمند په پښتو شاعرانو کی د یو جلا او منفرد مقام څښتن دئ - چه یوائې د ده دئ - دا سی معلومیږی چه د صائب او بیدل شعوری اثر د عبدالحمید پر کلام باندی لویدلئ دئ - او د ده نازک خیالی د دې فارسی شاعرانو د کلام د مطالعې نښتیځ (نچوړ - اردو) دئ - موږ به پر مخ وګورو چه وده ته ولی یوائې بیدل ډیر ویلی کیږی - دا سی خونه ده چه ده به د بیدل ډیره مطالعه یا د هغه د قافیو او ردیفو پیروی کړې وی - او که مازی په غیر شعوری طور سره او د خپل وجدان په رڼا او د خپل طبعیت په مقتضا سره ده - دا رنګ او دا طرز ئې خوښ کړئ دئ - او س زه د لته د نورو پښتو شاعرانو هغه خراج عقیدت وړاندی کوم چه دوئ د عبدالحمید د خاص طرز په ستاینه کی وده ته وړاندی کړئ دئ -

د ژوب په تاریخی سیمه کی زوکړئ او روزل سوئ پیر محمد کاکړ وائې -

پس له دوئیه موشگاف عبدالحمید دی
چه یې ووې بنه نازک نکته دانې شعر
قلندر اپریدی وایې - ه

د پښتو ژبې په شعر په داخله زمانه کې
پریدی نه سو قلندره بې حمیده بل حریف
عبدالعظیم سواتي وایې - ه

بیا رحمت په ماشووال عبدالحمید سه
چه جوړ کړي ده کتاب دی بنه روښان
بحث د عشق د دې کتاب دی په هر بیت کې
د باران په دود پرې ژاړي عاشقان
مرزا خان قندهاري وایې ه

بې حمید موشگاف د خیال په شعر
څه به وایم ناسفته دُر یې پئیل
شمس الدین کاکړ چه یو پیاوړی شاعر دی - د
پیر محمد کاکړ د مشهورې غزلې په پیروي کې وایې -
پس له ده څه موشگاف عبدالحمید دی
باریکي یې د کلام ده خان د شعر
عبدالله محزون قندهاري وایې ه

د عبدالحمید د ژبې صفت څه کړم
مونده نه سي په پښتو کې بله ژبه

بیا په دورِ دَ تیمور شاه اودل له ورایه
ماشوخیلو کې راوخوت حمید خان
چې ئې تیل په زور دَ طبیعت خپل
دَ الفاظو په ځائے ستورې دَ آسمان

مرزا خان، قلندر او عبدالله خوخپل ځانونه دَ عبدالحمید شاګردان او پیروان بولي - مرزا خان وائي - ۵

دَ حمید دَ خوش نظمۍ په زراعت کې
دا خنانئے دئے دَ شعر خوشه چین

لکه د محله چه ووئیلے سو - دَ حمید عشق مجازي دئے - چه په هغه کې دوني سوز او خوند نه وي - لکه په حقیقي عشق کې - دَ دے مثال داسے دئے لکه په یو ښائیسته ګل کې چه بوئے نه وي - یا لکه یو بادام چه سربیره پوست خوئے ښائیسته وي - خو زونۍ (مغز) نه وي پکې - دَ رومي رح او دَ سنائي رح په کلام کې چه کوم سوز دئے دَ عمر خیام په کلام کې چیرې دئے - دَ رحمان بابا کلام په دے دَ سوز او ګدازه ډک دئے چه دئے دَ عشق حقیقي ترجمان دئے - عجبه خو داده چه ځنے نقادان دَ حمید په کلام کې هم سوز و ګداز او درد و غم لټوي - نور خو نور ستر سنجونکې (نقاد) صدیق الله رښتین دَ کابل هم دَ حمید کلام دَ سوز کلام بولي - دئے لیکي ”دَ حمید مکتب په پښتو کې دَ سوز و ګداز مکتب دئے“ بیا بل ځائے لیکي ”حمید په پښتو کې دَ سوزناکو اشعارو خاوند

دی۔ دَدۀ اشعار دَدۀ دَ سوی زړۀ آواز او دردمند زړۀ چغې دی۔
مګر زۀ وایم چه صرف دَ درد و غم او سوز و ګداز په روایت او رسمی
خبرو دَ یو شاعر کلام موږ سوزناک او دردناک نه شو بللای۔ دَ
حمیّد په دا رنګه شعر و چه ۔

الٰهی دَ محبت سوز و ګداز را
په اور کی دَ سهی سمندر ساز را

دَ دۀ کلام سوزناکه نه شی ګڼل کیدای۔ دَ
حمیّد دَ شاعرئ فضا دَ درد و غم نه بلکه خوشحالی ده۔
دَ دۀ په کلام کی نه سوز و ګداز شته او نه درد و غم بلکه یو قسم
خوشحالی، سرمستی بے فکری، بے پروائی او بے غمی ده۔
دَ حمید ترعم خود دَ خوشحال خان خټک دَ کیلو او خواله نارے
ډیرے سوزناکه دی۔ چه دی ئې دَ خپل قام او دَ ملګرو زامنو
کوی۔ تر دۀ خود عبدالقادر خان خټک غم زیات دئے۔ دَ عبدالحمید
دَ شاعرئ رنګ دَ نشاط و سرور دئے۔ لکه څنګه چه په اردو
کی دَ میر تقی میر کلام سوزناک او له غمه ډک دئے۔ مګر دَ مرزا
سودا دَ کلام رنګ دَ نشاط او دَ خوشحالئ دئے۔ دغسی په
پښتو کی سوږ دَ رحمان کلام دَ سوز و ګداز خزانه بولو
خو دَ دۀ په مخ کی دَ عبدالحمید غم او سوز، غم نه دئے۔ بلکه
دَ خوشحالئ او زنده دلئ دبیدارئ دوئم نوم دئے۔

اوس به اول وار موږ دَ حسن او عشق په باب

دَ عبدالحمید خیالات کوروا او بیا به دَ دهٔ پر موشگافئ یا نکته دانئ باندې
رڼا اچوو۔ حمید عاشق دے۔ دَ خپل یار په عشق کې صادق دے۔
مطلب و مقصد او مرام ئې عشق او عشق دے۔ او لبس دَ دے دَپاره
دے و هر قیمت و نصره قربانئ ته تیار دے۔ دے حُسن خوښوی۔
خو دَ حُسن څرگندونه (اظهار) نه کوی۔ چه څه قسم حُسن دے دَ
عشق بدنامی، بدنامی نه بولی۔ او وائي۔ ؎

هیڅ دَ عشق په سیاه روئي مه شرمیږه
دَ ژوندون دَ کشیدے انځور دے دا

په عشق کې ځان دَ مجنون کشر ورور بولی۔ په خپله دا دَ
کشر ورور استعاره دَ خندا او دَ خوشحالئ فضا پیدا کوی۔ دے وائي۔

چه مې ولیده حمید دَ عشق په کار کې
لیونئ دَ مجنون کشر ورور دے دا

دے وائي چه زاهد لپس له مرګه لا هم دَ عشق په طاعون
مرګ پسې ارمان کوی۔ دا خیال داسې څرگندوی۔

دا دَ عشق طاعون مرګ به ئې ارمان شی
که دَ زاهد ځان کوتلې سې ژوندئ بیا

خپل معشوق دَ فارسې په انداز کې "بت" بولی او داسې
وینا ورته کوی۔

نه له تا سره سهیږم نه بې تا
مُبتلا دې کړم په څه بلا بُتا

دَ عاشقئ زور داسې ځرگندوی۔ ؎

عاشقي پَه اسلام راولې ترسا
پارسائي کاکړه وړه دَ پارسا

عاشقي وسپکتیا سره تړلې دې۔ پَه عاشقئ کې نفس وخود دارې نَه چلیږي۔ داخیال عبدالحمید داسې بیانوی۔ ؎

عاشقي بَه يې آخر تربنه سپک کا
که وي دروند تر کوهِ قافه تول دَچا

دَ فارسي اودَ اُردو دَ ځنو عاشقانو پَه دود حمید دَ ځان دپاره دَ "سپي" توری لاهم راولې او داځه شرم یا عار نَه بولې۔ دَ دې ځه معلومه سوه چه دَ دهٔ عِشق خودداری یا پَه نورو الفاظو کې "پښتونواله" نَه لري۔ او ما ل داده چه پښتو عِشق او پښتو شاعري خو خود داره، ورنه او سنجيده ده۔ داهغه وخت چه داشاعري دَ مجازوی۔ پَه حقیقت کې ځائے پَه ځائے دَ "سپي" تورې بنه معنی بښندي لکه دَ اردو شاعر بے نظیر شاه چه وائي۔ ؎

میں بے نظیر بے سکون یعنی سگِ دنیائے دوں
مشاقِ رحمت کب سے ہوں خدیا نبی المحترم

پَه دې شعر کې شاعر پَه دې وجه ځان ته دَ دُنیا سپې وائي چه حدیث شریف دئ چه "اَلدُّنیَا جِیفَةٌ وَّطَالِبُهَا کِلَابٌ" دنیا

مرداره ده او غوښتونکي يې سپي دي - مګر عبدالحميد ماشوخيل
د شاعرۍ پر هغه روايت باندې ځي چه په هغه کې مجنون
د ليلئ سپي نجوي او خپله مينه په ماتوي - خير خو داروايت
د پښتو شاعرۍ سره سمون نه خوري - دي يوا ځي د ځان
په باب وائي -

ه

چه د سپي قدر پرې ستا او زما نشته
معلومېږي چه تر سپي هم لا زبون يم

بيا ځان وائي -

ه

په يوه بوسه حميد د ساده رويو
کهترين بنده کړه ځان زرخريده

ځان تر سپي هم زيات په عشق کې خراب کړي بولي او
داسې وينا کوي -

ه

سپي به هم نه وي دا رنګ آواره کړي
لکه ما چه ننګ او شرم آواره کړه

دي وائي رستم غوندې پهلوان هم د عشق تاب نه
لري - او وائي چه د صبر او د زهد رستم هم د يار پر دردر قصير دي -

رستم د صبر زهد ستا په عشق کې
نخول سي دربدر لکه بيزو

وائي عشق زما په ځله اخيستلي دي -

ه

چه مې ختې فرشتو په لاس اخستلے
لاهاله مې بوئ دَ عشق تلوله طینته

دئ دَ مینې پرېښوول دَ دوزخ دَ تګ سره برابر بولی.
اووائي - ه

چه ناصح په ترک دَ عشق څه درته وائي
ودوزخ ته دې وباسې له جنّته

دَعشق سپکتیا دروند تیا بولی اووائي - ے

چه يې سپک کې عاشقې لګه بېنه
هغه کس ترکوه قافله دروند کېنه

دَعشق دَ سختئ بیان داسې کوې اووائي ه

دَعشق بار چه آسمان محکې ساه نه شو
نا په کم قوّت اخیستے کوَمه اندیښنه

دا په اصل کې یوه تلمیح ده چه اشاره يې وهغه امانت یعنی
دَ خدائ ونیابت ته ده چه مځکې واسمانونې له اخستو څخه
نه وکړه - خوانسان واخستې چه ناپوه دئ - دَدې خبرې ذکر
خدائ تعالیٰ په قرآن مجید کې کړئ دئ - ودې خبرې
ته ډیرو شاعرانو اشارې کړې دی - خواجه حافظ شیرازی
وائي - ه آسمان بارِ امانت نه توانست کشید
قرعهٔ فال به نام من دیوانه زدند
دَ اردو شاعر میر تقی میر وائي -

سب پہ جس بار نے گرانی کی
اس کو یہ ناتواں اٹھالایا

حمیدٓ وائی چه عِشق بے اختیاره کیږی ـ اِختیاری شئ نه دی ـ دی وائی ـ

عاشقی په اختیار نه کیږی هوښیار سه
ځان واوروته اچول اختیار د چا دی

عشق د کهرباء او د مقناطیس غوندی اثر لری ـ عبدالحمید د دے بیان داسی کوی ـ ؎

لکه کاه چه کهربا ځکوی و ځان ته
هسی ما ځکوی جذبه د دِلربائی

دی وائی د عشق ځوانی مرګے ورځ تر عمرِ خضرؑ ښه دی او داسی وینا کوی ـ ؎

که د عشق د ځوانیمرګو په عیش پوه سی
نور به خضرؑ په دے ډیر عمر پښیمان سی

حمیدؔ وائی چه د عِشق په لیښو ول زما د پارهٔ ګران دی ـ او بیخی ډیر ـ دی وائی دا لاندی شعری د عشقِ حقیقی معلومیږی چه وائی ؎

په پیری کی عاشقی د خدای عطا ده
ګنه څوک په سپینه ږیره زلمی کیږی
حمیدؔ بے د خپله یاره د هیڅ شی په خوند نه پوهیږی ـ

ځکه خوائي۔ ه

ننا شا دَ گلشن څه کوم بے تا
یاسمین او سمن څه کوم بے تا
چه هر لعل یې سرې سکروټې یې سوځ
زهٔ عقیق دَ یمن څه کوم بے تا
ستا دَ در په دوهه پروت یم قلندر یم
بادشاهي دَ ختن څه کوم بے تا

دَ سپین مخ وب نیازي داسې ځرګندوي۔ ه

مهرویان کله خپلېږي تلول دَ چا
ترسیوږمۍ چا پېره کیږي شپول دَ چا
که وفا که که جفا خپله رضا که
په خوبانو بالا نه دي بول دَ چا

دَ یار دَ خورو ورو زلفو بیان داسې کوي۔ ه

ورک کړ ستا پریشانو زلفو
تر ښتو ښخه دماغ

دَ یار دَ راتګ حال داسې بیانوي۔ ه

دَ مغرب دَ لورې لمر وخوت قیامت سو
که راځي په کبر و ناز دلبر دَ پاسه

که څه هم دَ عبد الحمید زیاتره کلام مجازي دي خو حقیقي
اشعار هم کله کله وائي لکه دا۔ ه

چه عاشق دَ عاشقئ په کار شرمیږي

شرمنده به سي تر خدائیه تر رسوله

دَ معشوق په مخ کې عاشق وار خطا سي - ۵

چه له ښکلې کوره راغئ یار دَ چا دئ

چه جواب ته شي ور وړاندې کار دَ چا دئ

و یار ته دَ ګلې په توکه وائي - ۵

نور په هر حسن و جمال دلبره درسته يې

بارې یو دَ آشنائئ په کار کې سسته يې

دَ عبدالحمید په اشعارو کې دَ "بوسې" یعنې مچې خبرې
هم ډیرې سته - ودے ته "لذتیت" یعنې خوند اخستل وائي -
ځائې په ځائې دئ دَ "بوالهوسې" خبرې هم کوي - ګوا دَ ده په
کلام کې لږ و ډیره "بوالهوسي" یعنې ارواح و بڼې ورځ یا لغم
مجاز هم سته - دَ ده دَ کلام یو بل خصوصیت دا دئ چه دئ هم دَ
فارسي شاعرانو غوندې دَ "خط" او دَ سبزه - "خط" یعنې دَ محبوب
یا دَ معشوق دَ ږیرې او دَ بریت خبرې کوي - کله سبزه خط بنه بولي
او کله يې بد بولي - دئ دَ معشوق یا دَ ښائیستو د پاره دَ "ترکو"
لفظ راوړي - چه دا هم دَ فارسي شاعرئ روایت دئ -

لکه حافظ شیرازي چه وائي - ۵

اگر آن ترکِ شیرازی بدست آرد دل ما را

بخال هندویش بخشم سمرقند و بخارا را

دَ رقابت ـ" مضمون دَ حمید په کلام کی ډیر دی ـ ورقیب ته ډیر په خشم دی ـ ډیر بد ورد ورته وائی ـ

دَ هجران" مضمون نسبتاً دَ دهٔ په کلام کی لږ دی ـ ولی چه دَ دهٔ دَ کلام رنګ ترخُو نیه زیات طربیه دی او په طربیه شاعری کی دَ درد وغم ذکر لږ وی ـ بیا هم دَ هجر څو شعره یُ دادی ـ

دَ هجران آه و فریاد
بوټی خاوری کړه بر باد

بل ځائی وائی ـ

عمر هسی کړو لیجران را باندی پنه
لکه پرنیوزی دَ چاغاړی ته کولنه

دَ ترکو یعنی محبوبان داسی کوی ـ

چه دَ ترکو دَ جمال په جرکو کښیوزی
افلاطون زمتا دَ عقل کاندی حجر

بل ځائی وائی ـ

دا دَ ترکو دَ مشکینو زلفو تور دی
چه ورکړی پری کوی کمان دَ مشکو

دَ یار دَ بڼړیی وَ دَ بریت دَ خط یعنی بیښتانو په باب داسی وینا کوی ـ

سیلئی غوندی په اوږدو خط حسن
سر تر پایه شنه لمبه سم شنه لوخړه

دَیار خط توره بلا بولی او وائی - ؎

چه په مخ دی دَ خط لیکه دَ وتاراغله
گویا مخ لره دی توره بلا راغله

بل ځائی وائی، چه که دَیار بریره نه وائی راغلی، دَ مخ
اوربه ئی بتول ملک سوی وائی - ؎

که دی خط په خاکستر ځلی نه وائی
دَ مخ اوربه دی تراوسه وُو ملک سوی

بل ځائی وائی چه دَیار دَ مخ بیبنتان داسی ایسی لکه
پر شیرینی چه مچان کښینی - دا خیال داسی خرگند وی -

؎ دائی خط په کذره دَ مخ جنبش کا
که په خوان دَ شیرینئ مچان تنبلی

عبدالحمید دَ بوسی او دَ ځولیسلو یعنی خوند اخستلو خبری
لعم کوی، دی وائی - ؎

ځکه زاسی لکه مگس په افسوس مرم
چه شاره سم دَ سرو شونډو له شربته
له بتانو دَ بوسی طمع طاعون ده
مومی څوک دَ شوم له دره نواله
یار له یاره څوا په څوا فائده مومی
اخستی نه سی بوسه په پیغامونو
زما غابن ویرو څوږ و دَ بوسی توی کړل

ناخبرې په ځوانۍ کې ژړوي

د نر "حور" خبره داسې کوي۔ ؎

نن ګواهي په حمید درسته د جنت سوه

چې يې ناست په ځنګ کې تار ټکه نر حور دی

د رقیب" په لړکې د عبدالحمید لهجه تنده ده۔ کله يې استعار

وتمثيل په "سپي" سره کوي۔ او کله په کافر سره د بې دا رقیب

په باب داسې وينا کوي۔ ؎

ما وې غوږ به کړم رقیب د آه په تورو

کفایت به مې ګوزارکې نه وو نه سو

ماله خپلې خودۍ بر په ځان رقیب کړه

ګنه ما شې سره زور د نمرود نشته

فرښتې د سپي له برۍ له لرې ګرځې

له رقیب سره يې ولې خسور ګړه

په رقیب له ما نه مهر مزید مکړه

د حسین په مرګ شه د د یزید مکړه

عبدالحمید "ازبک" او "مغولواله" دوې اصلاحې استعمالو

چه د دواړو مطلب ظلم او تیرې دې۔ د مغول" څخه د

"مغولواله" پرورن دی" پښتو نواله" جوړه کړې ده۔" ازبک

د ترکو یوسخت قام دی۔ په اسانه ډیر تیز ځغلوي او خواري

ګټه خلک دي۔ خوشحال بابا د "ازبک" څخه د ظلم او تکړه

مطلب اخلی کله دی چه وائی - فعل او مکر عبدالحمید د ظالم
مطلب ځنی اخلی - دی د مغلوالی په باب کی داسی وینا
کوی -

یو به نه سم مغلواله د رقیب ستا
په رښتیا که زیر ولی پښتنی دُم
که به نور وکړی ظلم د مغول دی
خدای عمونه کړه داستا مغول زما
په تمام جهان قراره قراری ده
په حمید د غم مغول را و خاته

د اوزبک او اوزبکی په لرکی داسی وینا کوی

ځود نفس سره او نه دریږی په کلکا
په نری به کله خلاص سی له اوزبکه

رند مشربی - چتی - بی باکی او په واعظ و په ناصح
خبری نغښتل هم د پښتو شاعری یو لوی مضمون دی
په تیره بیا د مجاز شاعران دا رنګه خبری ویری کوی
د حمید دا رنګه اشعار دادی -

پند واعظه هاله بنه وی چه مانه ئی
تا خوجوړه کړه پیشو وکه خوک میو
په دی شعر کی عبدالحمید د واعظ د وعظ و ند
خبره کوی او وائی -

ته خوښه درو کو سر پند و نه وائي
بارے نه راځی په کار زما یو جو

دئ د مینے د پرېښو ولو نصیحت د چا څخه نه
قبلوی او داسے خیرخواه بدخواه گڼی او وائي ے

چه پند و نه راکوی په ترک د مینے
زه داهسے خیرخواه گڼم بدخواه.

د اردو مرزا غالب هم د دغه معنے یو شعر ویلے دے
چه دا دے ۔ ے

یہ کہاں کی دوستی ہے کہ بنے ہیں دوست ناصح
کوئی چارہ ساز ہوتا کوئی غمگسار ہوتا

دئ وائي چه د کعبے او د بت خانے څخه مے مطلب د یار
موندل دے ۔ داشعرئ د اردو او د فارسے د دارنګه شعر وغونډ
دے ۔ چه مطلب ئے حقیقی یعنے و حق ته ځان رسول دے۔
دئ وائي ۔ ے

که کعبے که بت خانے ته تګ وپوئ کړم
زما بلے د یار د مخه مقصود نشته

دئ وائي چه د ننګار په مخ کے د جنت نقش و نګار
هیڅ نه دے ۔ ے

د جنت نقش و نګار و ربوری هیڅ سی
چه ننګاره کړے یو ننګار ننګار له مخه

دې وائي عاشوق هره شپه تر ملا او تر شيخ زيات زهد کوي. او وائي۔ ؎

هره زهد کړي عاشوق په هره شپه کې
چې په درست عمر يې شيخ او ملا نه که

بل ځائې وائي۔ ؎

هر ځله چې راته وائي هغه کړونې يم ناصح
بې له دې چې نه يم له خوبانو صبر کړونې

دې وائي چې پيشې دَ خدائې د پاره موږ ک نه نسي او دَ ناصح نصيحت و ماته خوائې پاری نه معلوميږي۔ ؎

نه ناصح و ماته پند برائې خدا کړي
نه پيشو نسي موږک برائې خدائې

عبدالحميد دَ پښتو نوالې خبرې هم په خپلو شعرو کې ذوې۔ لکه دا شعر يې۔ ؎

قول او بول په ږوندون نه سي نورولې
ځکه ځان په قول و ږنې پښتانه

دَ عبدالحميد ماشو خيل خاص ميدان او مايه ناز کمال دَ ده نازک خيالي۔ موشگافي او مضمون آفريني ده۔ دا کله دَ تشبيه او دَ اِستعارې له ناولده استعماله پيدا کيږي۔ کله دَ ناولدې تلميح له حاته پيدا کيږي۔ او کله دَ تمثيل دَ وجې پيدا کيږي۔ تمثيل دا چې په يوه مصرع کې چې شاعر کله خبره ياد عوی

او کہ نو په دا بدے مصرع کي د هغه خواب یا مثال ورانډے کړے. کله کله د حسن تعلیل د سببه که څه هم نازک خیال او نادره معنی پیدا کیږے. دا باریکي چه څوک ئے ویرېږي د غوټه ئے خوند کیږے. ولے چه بیا د لوستونکي فکر نه ور رسیږي. پائے ته ویره نازکخیالی او نکته آفرینے یو معما او چیستان پاتے شي. د فارسي په شاعرانو کي نکته سنجي او مضمون آفرینے تر ټولو زیاته مرزا عبدالقادر بیدل کړے ده. هسے خو افغاني، عرفي، صائب، کلیم، او نور نازکخیاله شاعران وو. خو بیدل دا طرز و پائے ته ورساوه. په دے حیث سره د بیدل شاعرے که ویوه خواته اوچته ده. او د خیال مرغه نه سے پسے رسیدا ئے. خو بله خواته د دے څه خوند اختلے او په دے ژر پوهیدل او دا چه د دے پیروي کول ویر گران کار دے. د بیدل د غه طرز و وچه و غالب ته گران ورپریوائے او ده آخر کار په مجبوري وویل چه.

طرز بیدل میں ریختہ لکھنا
اسد اللہ خان قیامت ہے

یعني د بیدل په رنگ کي د اردو اشعار ویل ویر گران کار دے. مونږ چه د بیدل او د عبدالحمید مقابله سره کوو. نو بیشکه چه بیدل تر حمید زیات دے. خو په پښتو کي بیا په دغه رنگ کي حمید تر ټولو زیات دے. او ده په دے باندے ویرو یار کړے دے. لکه دے چه وائي

اوس دَ ذکر تو ره واچوه حمیده
چه دې نسته په پښتو کې څوک حریف
بې ځائې دَ فخر پرچم وائي۔ ۵
پارسي بانو دَ غیرت کوتي په غاښ کړي
چه حمید سخن سازي کړه په پښتو کې
خوشحال خټک هم دغه رنګه یو شعر وئیلې دې۔
چه خوشحال خټک یې کاندي په پښتو ژبه خبرې
په فارسي ژبه بنده وئ کړ په هیڅ یې مضمون هسې

دَ عبدالحمید نازک خیالي دَ بیدل نقل یا پیوند تقلید نه معلومیږي۔ دَ دهٔ خپل خیالات دي او په خپل انداز کې یې وائي۔ دَ حمید دَ کلام لویه برخه دَ دغه نکته سنجۍ او خیال آفرینۍ ډکه ده۔ خو دې ساده صفا او سپېڅلي شعرونه هم ډیر لري۔ دَ حمید تلمیحات ډیر ناولده او ښکلي ډیر دي۔ استعارې عجبه عجبه راوړي او تشبیه هم ناولده ورکوي۔ اوس به دَ دهٔ دا رنګه اشعار ګورو۔
اوّل ولوله آیت دَ "لَن تَنَا"
هله لاف دَ محبت کړه دَ اشنا
په دا اول شعر کې حمید دَ قرآن مجید و یو آیت ته چه دَ هغه څخه څلرمه سپاره شروع کیږي۔ اشاره کوي چه مطلب ئې دادې چه تر هغو پورې تاسې پرهیزګاران نه سئ کیدای چه تر څو تاسې دَ هغه مال څخه پیسه نه کړئ خرڅې کوم چه پر تاسې باندې

گران دئ - د دے شخه معلومیږی چه حمید په عربی او فارسی دواړو ښه پوهیدئ - د تمثیل رنګ یې دادئ - ٥

چه دانه په خاورو پټه شی خوشه سی
په کوګل د ننه وساته ارمان چپ

که هر څو به خط ، نو خط و کاږی توره
زیر به نه کا په داجهل دا راجپوت

لیکه د تور خط د یار له مخ سوه راچاپیره
ښهر د اسلام کم غلبے د کفر زیر

کامیابی په سر کوزی سره مونده سی
د ښیښے د پاسه نه سی نیوه جام لوړ

مطلب دا چه ځان کم بولی بریالی به سی - لکه جام چه تر صراحی لاندی سی - نو د شراب ورک سی -

دئ وائی ساده روئے د سادګئ له کبله د ډیرے
څواکوی - کنے وچنے ته څوک د چنے یعنے د ښو لاسے پریږدی -

ساده روئ خط ته هوس د سادګی کړی
وچنے ته پر ېنبوے نه سی د چنے لاس

د مړو خلکو دیګ ناوخته پخیږی - رقیب دی زما په آه پورے نه خاندی - یو وخت به آثر راوړی - حمید داخیال داسی څرګند وی - له رقیبانو می دی په آه پورے نه خاندی
د مردانو دیګ پخیږی په مهال لیږ

دَ اسمان ذکر والی شخصه داسې ناولده مضمون پیدا کړی دی - او وائی چه دَ فقیره شخه سړی فقر نه غواړی۔

درویزه له درویز کره ناکسې ده

دَ فلک کچکول ته مه نیسه کچکول

دَستم په دام درم مه هوسیږه

مه کړه خدای مار اولړم دَ چاهم

وړی زړه په تلوار مه غواړه دَ بنکلو

وطن وته رسیږی غریب ورو ورو

بنه سړی د منکروی - لکه میاشته چه کرار کرار

نری کیږی - او بیا خلک ورته گوری - حمید وائی -

که دی مینه هر و پوست کړی زهیر مه سه

سی هلال له لاغری انگشت نما لی

بل ځائی وائی - ۵

دَ وریځی میاشت قدری وی په لیره کی

نو خطان بی ځایه نه کاندی که ناز کړی

په عشوق کی بر بالیتوب دَ کشنې هلک سپو رمی نو بنتل

دی - عبدالحمید داسی وینا ګوی - ۵

خوک چه غواړی کامرانې په عاشقی کی

اشاری کالکه وړکی سپوږ مۍ بولی

داخوږه دَ زلفو خیال په زړه ملال کړم

کنه زه سر د مار کله په مار خوړمې
دا نازکخیالي یې ګوره ۔ ه

چه د اسپنو زنځیر شلوي په کتو
هغه دیو په اومه تار د احسان تړلی

د بلبلې د ژړا او د کبک درې د خندا تړون دا سې بنکاره
کوي ۔ ه د د بلبلو ژړا نه اروي په باغ کې
خله خاندي په قهقه کبک دري

د رقیب په باب وايي ۔ ه
بې هوده مې ورقیب ته خواري بنوده
کله زړه په مسلمان د کافر خوږ سي

یو نوی خیال یې دا دی ۔ ه
که دې زړه غواړي خندا د ګل بدنو
روښوه لکه شبنم شپه په ژړا کې

دا خیال یې ډیر ژور دی ۔ چه وایي ستا د زلفو شو قدر
چه د چار ورزي سو هغه شبکیر چه وو تر بڼ مخ کم وو ۔
چه روزي یې سو شو قدر ستا د زلفو
کم شبکیر وو روزي سوی د شانه

د عبدالحمید په کلام کې تلمیحات ډیر دي ۔ او زیاتره
د نورو شاعرانو څخه جلا او نوي دي ۔ د ده تلمیحات هم د ده په
نازکخیالي کې زیاتوب کوي ۔ د ده په خپلو تلمیحاتو سربې په

آسانه نه پوهیږې - دده خو داسې شعر ونه دادې - ۵

مهتر خضر به یې په عمر مشترې سې
که یې خال غلام د مخ په نخاس وینو
د خاطر د خلیل ویره مې ترې نه سې
که په بدو مې سې رقیب لکه نمرود
د یوسف په دود به پر یوزې وکوهې ته
چه د عشق و معراج ته لرې شوې
نیم جواب د ترکو نه سم و رکولایې
که په عقل ارسطو یا افلاطون سم
په رقیب له مانه مهر مه زیده مکړه
د حسین په مرګ مه د د یزید مکړه
خوار مجنون ته به یې عشق نه وې پرې الښې
که پیخلې سوایې رستم داکشاله
نه کړې نوح د هاد خیال ورځنې بلږه
که مې اوښکې په چښمانو کې طوفان سې
چه رقیب غوندې تور دیو یې حکومت وي
د سلیمان حمید په لاس کې نګین ته یې
د قارون له بد بویه مې خوا کښیږې
څکه تو کړه د د نیا په سیم او ند زما

د عبدالحمید تشبیهات ډیر خوندور او زړه کښونکې وې.

زیاتره ناولده اورنوي وي - لکه دا - ھ

هسې تللې یم په فکر د جانان چوب
لکه کاڼې په تلې کې د عمان چوب
په لیده مې د یار ولتښتې رنګ هسې
لکه نور په کتاب کې د مهتاب سخت
لکه څوک چه کټورې غواړي له زاړو
هسې شان سوه د وفا تمنا پوچ
په ژړا مې هسې خوړ وخندا لاړسې
لکه پاڼې د ګل ماتې کې باران شوخ

ورقیب ته په څه ناولده توګه تشبیه ورکوي -

چه وایي - ھ

لکه شوم چه په خوړو کې شي نازیږې
هسې ښه ایسي د ترکو رقیبان شوخ

بل ځای د رقیب په لړکې داسې وایي - ھ

د رقیب کینه مې خوا کښوي هسې
لکه میچ په آب وخوړ کې سي د چاکله

بل ځای داسې وایي - ھ

هسې زه تر ښکلې مخ پورې لاچاریم
لکه یخ اوګرم لمرته د تموز
له اغیار سره ګروت دي د یار هسې

لکه خوک کاسره کړم پاک و ناپاک
تا ئے رنګ هسے له صبره سره وران کړم
لکه وران له پښتنو وے د مغل رنګ
بل ځائے وائي۔ ه

ورکی نه بازے وار ګنګ کانی کودرے
لکه زهٔ بازم په تادين او ايمان خپلے
د يار و بزيرے او زنه ته داسے تشبيه ورکوی۔

ترتور خط لاندې ئے زنه هسے زيب لا که
لکه اتولی سے مچئ په انګبين
په حجاب کی جمال څنګه ايسے۔ حميد وائي ه

له حجابه دے جمال هسے جلوه کا
لکه سره لمبه چه خيز ے له تنوره
بل ه

هسے زهٔ په خر قامت له تا ځار يږم
لکه ځانګه د چابيلے تر صنوبره
بے عمله علميّت څه په کار نه دئے
لکه بنځه چه تر ملا ترے درسته
د خال تشبيه ه

مشکين خال ئے په سرو لبو هسے زيب کا
لکه مست په ميخانه کی ملنګ کښيني

بل ځائے وائي۔

دا زما له غمه شیشے زړه یې خیالی د یار د شونډو

هسې رنګ زیب و زینت کا لکه مئے په شنه پیاله کې

د عبدالحمید استعارات لکه د تشبیهاتو غوندې نا ولد، خوند ناک

او مرکب یا او بزده وې - دا د ده د استعاراتو مثالونه دي - چه کلام یې

زور او خوند په موي۔ ؎

نا خبره یې له حاله شفقت بولي

که د وینو په ژړلو کړم اسمان دوب

د مخ د خط استعاره داسې کوي او وائي - ؎

و که جوش د خط سیاهي د یار په مخ کې

که نمرود کړه بیت الله نخاس د کفر

د یار زلفي - ؎

دا د یار د زلفو خیال دې نه پو هیږم

که لړم مې پټکلوي زړه په لشو

بل - ؎

دا مې لاس را کیښې صنم په سر د پا سه

که وزمې ته راکوز سو لمر د پاسه

د خط و وصل و داد ته په همائی مرغه سره استعاره ورکوي او وائي

دا ئے خط په داد وصل سرفراز کړم

که همائی مې په تندې برابر راغئے

فرياد ﻫ

دا زماله خولې فرياد د عشق په زور ځي

که لمبه د تناره له خولې د اور ځي!

د خپلې غمزده شنه زړه استعاره عبدالحميد څه ښه وائي

او په څنګه عجبه توګه يې دي وائي - ﻫ

دا زماله غمه شين زړه په کې خيال د يار د شونډو

هسې رنګ زيب وزينت کالکه مې په شنه پياله کې

پر مخ د يار استعاره وائي - ﻫ

ماويل عينه ګل دی د غنچې په لمن نغښتی

که مې کوت يو ګل اندام ووپروت په سبزه دوشاله کې

که څه هم د عبدالحميد د شاعرۍ عام رنګ مجازي دی - خو ده

اخلاقي اشعار هم ويلي دي - چې ډير ځله په هغو کې د عشق حقيقي

اشعار هم ګډ وي - اخلاق د ختيځ د شاعرانو لوی ذکر دی - د رحمن

ټوله شاعري او د خوشحال نيمه شاعري اخلاق دي - حميد د نس

ډيره غند نه کوي - يعني خوړل، څښل او استراحت کول - يا د اپه

د دنيا سپک کيدل او د دنيا له څه نه پيژندل د ده يو څه اخلاقي

اشعار دا دي -

دنيا پاته ده - ﻫ

نه زما ده نه د ستا ده دا دنيا

پاتنه سوې له هر چا ده دا دنيا

دیوه غیږ کی پرته وبی ته خاندی

څه لولی او بی حیاده دا دُنیا

په شرعه سم څه ۔ ه

شور په یوی کی په کیل برابر دروی

ولی ته له شرمی کوږ ځی نا صوابه

بی حضوره لمونځ ۔ ه

په دغه لمانځه لمانځه نه سی ښکا ځه سی

چه دی زړه دی په رباب مخ په محراب

د دغه معنی د فارسی دروُدکی شاعر یو شعر دی چه وائی ۔

روسوی محراب نهادن چه سود

دل به بخارا و بتان طراز

چه چیری وب نه لته ادب ۔ ه

په زړه مهر په خوله قهر زوی ته بویه

څه ښه وائی چیرته وب هلته ادب

قناعت ۔ ه

قناعت له دیره غمه سری خلاص کا

اچاوه په خراب نه سی خراج

زړه تله وائی ۔ ه

غابن دی و خاته په بله رسوی کنداس

لادی نه خیژی له بدو چارو لاس

دعا کوی۔

ھ

هرچه ستا، ستا دَ رسول پکښې مرضی وی

هغه کار شغل زما کړے زما رَبّه

عبدالحمید دَ خپلے زمانے وَ حُوخبر وته هم کله کله اشاره کوی۔
لکه دا یو شعر۔

ھ

په پردو مړانه نه کیږی بے خپلو

له لحده دا آواز جمال، جلال که

دَ پښتنو دَ سیمے یو نامتو شاعر عبدالعلی اخونزاده، دَ
عبدالحمید څخه ډیر ستاثر دی۔ دی هم دَ عبدالعلی په ردیفو
"شوخ" پریوُوت "لاس" او چپ کی "غزلے جوړ وی۔ په
خط "ردیف کی هم دوه غزلے جوړ وی۔ دَ حمید شعر دی۔

نیم جواب دَ ستر کو نه سم ور کولے

که په عقل ارسطو یا افلاطون سم

عبدالعلی اخونزاده وائی۔ ھ

که په عقل افلاطون سی

چه مړ ک راسی ورته پر سی

عبدالحمید وائی۔ ھ

څکه مادَ عشق په توره ځان شهید کړ

چه می نه رسی دَ صبر په کفن لاس

عبدالعلی اخونزاده وائی۔

که یار ورسی دَعبدالعلی په قبر
چه پوښتنه بے وفاسی ترکفن لاس

عبدالحمید وائي ۔ ؎

یار را څخه لار سو سپی نه مرم ژوندیٔ پایم
تُو زما په مینه چه لا پایم څه بلا یم

عبدالعلی اخونزاده وائي ۔ ؎

یار د روی او زهٔ نه مرم هر کوره بے وفا یم
ترکانی په زړه سخت یم ترا و سپینه بالا یم

عبدالحمید پر له پوری (مسلسلی) غزلی هم ډیری لری ۔ دیٔ دوے دوے مقطعے هم ښه ډیری وائي دَ خالصه پښتو په ډیرو ردیفونوکی یٔے غزلی جوړی کړی دی ۔ دَ پښتو بے شاله نازکخیاله شاعر دیٔ ۔ راورټی دَ پښتو ګرامر په مقدمه کی لیکی داسی قسم احساسا تو ته دَ یورپ مصنفین دَ قدر په نظر ګوری ۔ حمیدَ یو فلسفی شاعر وُو ۔ چه خلک ورته دَ پښتو سعدی وائي ۔ هنری والتهر بیا لیکی ۔ "دَ حمید حستیات دَ قدر قابل دی ۔ او دَ هر یورپی مصنف دَ دلچسپئ باعث کیدا ئے سی ۔ حمیدَ دَ کلام په بچوالی کی دَ پښتو سعدی دیٔ ۔ او وجدانا ویلای سم چه دَدهٔ غزلیات دَ نورو شاعرانو په مقابل کی بے دَ خوشحال خان نه په اوله درجه کی راځی ۔

دَ دهٔ غزلیات په "دُر و مرجان" مشهور دیٔ ۔ قاضی

# امیرخان
# څوک وُو؟

په اتم اولسم جماعت کې چه به موږ تاریخ وایه نو بله دَ انګریز
دَ زمانې په تاریخ کې دَ پنډاریانو نوم هم راتلے - چه ټګان خلق
ظالمان او دا کوکان وُو - او دَ دوی مشران امیرخان، کریم خان
واصل خان او چیتو وُو - دا یوه خبره به مَا ته ډیره عجیبه ښکاریده
امیرخان او کریم خان و نیول شُول - واصل خان مړکړے شو -
اور چیتو بھاگ نکلا جسے چیتے نے مار ڈالا؛ یعنې چیتو پړانګ مړکړے - لکه څنګه
چه یې نوم وُو - هغه رنګه شې وخوړ - دا قِصّه دَ لارډ هیسټنګز
(HASTINGS) دَ وائسرائے توب دَ زمانې وه - چا چه په ۱۸۱۰ ع کې
یو لک شلے زره فوځ جوړ کړ - او په پنډاریانو یې ورخیژ ولے وُو - او
بیا یې امَیرخان ته په راجپوتانه کې دَ ټونک ریاست ورکړے وُو -
دَ هندوستان دَ اعظم ګړه دَ ښار " میاشتیزه معارف "
ډیر په زړه پورې او کتوری عِلمی تاریخي مذهبي څیړنې کوي -
دَ دې مجلّې دَ ستمبر ۱۹۶۹ ع په ګڼه کې په نواب امیرخان باندې

یو دیرښه لیک دئے چه سرتورئے دئے - کیا نواب امیرخان پنڈارئ تھے" او لیکونکے ډاکټر برهم رت شاما ایم اے پی ایچ ډی دئے - زه ددا لیک ډاګر دوخخه په پښتوکی پښتو لوستونکو ته وړاندې کوم -

امیرخان یا میرخان چه په ۱۸۱۷ع کی الیسټ انډیا کمپنی (EAST INDIA COMPANY) دیونوی ریاست ټونک حکمران وټاکی ده بنیر سالارزئے - پښتون وو - یعنی دسوات دوکلے بنیر یا بونیر او سیدونکے وو - دا او ولسی عیسوی پیړئ په شروع کی ددوه نیکه طالع خان خپل د قطبیځی لویدیځی سرحدی صوبے قبائلی وطن پریښوو - او د روهیلکنډ نامتو پښتانه علی محمد خان نوکری یے اختیار کړه - د امیرخان پلار حیات خان د کتهیر په ضلع کی په سنبهل (او سنی مراد آباد) کی یوځمکه او موندله - او کروندہ یے شروع کړه - نواب امیرخان په ۱۱۸۲ھ مطابق ۱۷۶۷ع کی د سنبهل ښار په محله سرایئے ترین کی وزیږیدئے -

څه وخت چه امیرخان د شلو کالو سو - نو د معاش د پاره د کور ه ووت - په دغه شپوکی په متھرا کی فرانسیسی سپه سالار "ډی بوځے" د خپل نامتو باد ار (آقا) سیندهیا د پاره فوج راټولا وئے - امیرخان هم ځان بر وکوت خو په سپاهیانوکی نه واخستلے سو - ولی چه ډی بوځے د عمر د لحاظه له کبله دئے وانه خست - تریو څه مودے پورے چه

به چیری بنه مزدوری ور پیدا سوه. نو به اَمیر خان هَلته نوکر سو. نو دار ننګه به دهٔ دَ سیاهي فوجي غوندي عمر تیراوئ. او دَ عمر په سرکي لا سیاهي سَو. دَ بهوپال وزیر "چهوټې خان" چه مړ سو نو هلته یو سیاسي انقلاب راغئ او دَ هغه ځائے نواب محمّد حیات خان دَ خپل کومک دپاره ور وغوښت. دَ دې موقع څه امیر خان ګټه واخسته. او یو کال په بهوپال کي اوو سید.

تر دې ورسته امیر خان د راجپوتې سردارانو ورځنۍ سال او وج سنګه طرفداري وکړه. ولي چه دولت راؤ سیند هیا دواړه نو موړي د رګهو کړه څخه ایستلي وُو. په دې جد و جهد کي امیر خان خپل قابلیت دلاوري او زړه ور توب ښکاره کړ. دَ دهٔ دې کار نامو په نو موړو راجپوتو ډېره خوږه اغیزه وکړه. چه هغو اَمیر خان دَ ټولو سپاهیانو سرلښکر وټاکئ او دَ فتح ډېره کلاهم ده ته وسپارل سوه. مګر دا کلا تر ډېره دَ امیر خان په لاس کي نه سوه پاته.

خبري دَ نصیب دي. په ۱۷۹۸ء کي امیر خان دَ جسونت راؤ هلکر ګیني لاس وکر ځیدئ. هلکر دَ دهٔ سره لنګوټه بدله کړه. یعني دواړه یو دَ بل لنګوټه بدل یاران سُول. هلکر دَ امیر خان (باتوري او لویو کار نامو په سبب ده ته لوئي لوئي عهدې ورکړې. امیر خان دَ هلکر په مرسته او مل اتړ کي دَ فرنګیانو پیشوا (مرهټه باچا) او بهونسله سره وجنګیدئ. او دَ خپل مټلاو میراف نوم ئے په

ټوله علاقه کې خپور کړې - جسونت راؤ هلکر د امیر خان د کومک په هڅه دهٔ ته ډیرې علاقې ورکړې یعنې په ۱۷۹۸ع کې یې ساونج په ۱۸۰۶ع کې یې ټونک او پیړاوه په ۱۸۰۹ع کې یې نیالمیړه او په ۱۸۱۶ع کې یې چهیړه امیر خان ته ورکړه - او د نواب خطاب یې ور وباخښې - امیر خان د دې نیکۍ بدله جسونت راؤ ته داسې ورکړه - چه پرځلې په مهر باندې یې ولیکل فدوي جسونت راو هلکر څه وخت چه د هندوستان والسرائې لارډ ویلزلې بلیر ته ولاړ نو د ایسټ انډیا کمپنۍ د هندوستان په معاملو کې د کار نه د رلودلو پالیسې شروع کړه - د دې څه ډاکو کانو او پنډاریانو ته لاره سوه - د دې طوائف الملوکۍ په دورکې امیر خان د خپلې توپخانې له کبله په منځنۍ هند او په راجپوتانه کې ډیر طاقت پیدا کړ - او د دهٔ لاندې کول آسانه کار نه وُو - کرنل تاډ (COLON ELTOD) وائي چه د خلکو خیال وُو - چه امیر خان ناقابل تسخیر دې - د راجپوتانو خاص ریاستونه لکه جے پور جودهپور او اودهے پور د نواب امیر خان تر اقتدار لاندې وُو - د اودهے پور د نبکلې او ښائسته راجکارې کوشنا کمارې د کتهلو د پاره جودهپور او جے پور غوښته او چاره وُو - او راجپوتانه د دوئ د دښمنۍ له سببه ویرانه وه - امیر خان د دې حال څه فائده واخسته - او د رومره ریاستو څه یې زیاتې روپۍ واخستې - د امیر نامه مصنف منشي لبساونې لال شادان لیکي

چه نواب امیر خان د رنجیت سنګه د (پنجاب) او د شاه شجاع د کابل باچا) او د خپلو پښتنو قبائلو ورونړو په ګړه مرسته او کومک سره د انګریزانو د هندوستانه څخه د ویستلو او شړلو منصوبه جوړه کړې وه. مګر ولې چه حالات نه وو برابر نو دا کار پاته سو. د دې څخه د امیر خان د روښانه دماغۍ او وطن دوستۍ اندازه په ښه توګه کیدائ سي. له ۱۸۰۵ء څخه تر ۱۸۱۶ء پورې چه کومه طوائف الملوکي وه. د امیر خان د کوټه د ریاست د ناظم اعلی رانا جهالا ظالم سنګه سره ډیر ښه تعلقات وو. او تر لعغو پورې چه نواب امیر خان د ټونک واکدار نه وو مقرر سوئ خپل کور وکهول یې د شیرګړه په کلا کې ساتئ او دا رنګه د ظالم سنګه د هوښیارۍ د کبله ریاست کوټه هم د پنډاریانو د ظلم وزیاتوب او تیرې وبرې څخه په امان پاته سو.

څه وخت چه ایسټ انډیا کمپنۍ د پنډاریانو خلاف کاروائي شروع کړه. نو نواب امیر خان د انګریزانو سره د روغې کولو د پاره تجویز ونه وړاندې کړه. او د ده وکیل لاله نرنجن لال د ډیلي د برټنکي ریزیډنټ سر چارلس متکاف سره خبرې اترې وکړې. چه د هغو د نتیجې په طور نواب امیر خان د ټونک امیر او حاکم سو.

پاته سوه دا چه پنډاریان (PINDARAS) څوک وو؟ د هندوستان په تاریخ کې د پنډارې نوم موږ وار لمړی

په ۱۷۶۸ع کې او روبه دغه زمانه کې پنډاریانې د مرهټې فوج د کومکیانو په څیر موجود وُو۔ دانوم د یو لښکر کوبکې شي خه راوتلي دئ۔ چه پنډاریانو به هغه ډیر استعمالاوه۔

پنډاریانو د پیشوا باجي راؤ اول په مدد کې هم برغل وهلئ وُو۔ نو په دے پیشوا باجي راؤ دوئ د خپو سردارانو سیندهیا او هلکر تر سایه لاندې په مالوه کې وُو۔ دلته دوئ د سیندهیا شاهي او هلکر شاهي پنډاریانو نوم اوموند په ۱۷۹۴ع کې سیندهیا و پنډاریانو ته د نربدا د رود پر غاړه د هستو کې دپاره ځمکه ورکړه۔ چه د هغه په پر اختیا کې کریم خان چیتو دوست محمد خان، نامدار خان او واصل محمد ډیر زیاتوب وکړ۔

د ایسټ انډیا کمپنۍ د غرض نه در لود لو عدم مداخلت پالیسي پنډاریانو ته ډیر زړه ور کړے۔ سیندهیا هلکر او جنکیالي پښتانه سردارانې هم د دوئ په حمایت کې وُو۔ نو له دے کبله په پنډاریانو ډیر فتنه جوړ ونکي او تخریب پسند عناصر هم ننوتو۔ دا خلک د وحشیانو غوندې وُو۔ پر کلو به بریوتو او لوټے به یې کړو۔ او وران به یې کړو۔ کوم شے چه به یې د ځانه سره نه سو وړاے هغه به یې دلته وسوځئ۔ پر بیګو خوارانو باندې به یې بیا په زیاته ظلم وتیرئ کاوئ۔ په ارت ډکر به یې جنګ نه کاوئ۔

هر ځائے ته چه به ور سیدل نو غوبدے ته وبالا او تا لا والاکے۔ د دوی دویم نوم د برباده طوفان او د ظلم نښان وُو۔

اوس پوښتنه کیږی چه آیا امیر خان هم پنډاری وُو که یه؟ د ج پور د علاقے د وندار خلق د پنډاری یا پنډاره په نامه سره یادوی۔ خو د امیر خان سره د پنډاری نوم لګول یومخ غلط دی۔ په دے کی هیڅ شک نشته چه پنډاریان د امیر خان ملازم وُو۔ او په ۱۸۱۱ع کی امیر خان یو پنډاری سردار کریم خان ته د دولت راؤ سندهیا په مقابله کی پناه ورکړے وه۔ د نواب امیر خان طرز عمل تر ډیره حده پورے پنډاریانو ته سوے وُو۔ خو امیر خان یو روهیله پښتون وُو۔ چه د هغه پنډاریانو سره هیڅ تړون نه وُو۔ دی خود ساخته جنګیره سردار وُو۔ چا چه د خپلے بانوری او دلاوری جوهر په وار وار د جنګ په ډګر کی ښکاره کړی وُو۔ د ټونک ولی عهد محمد وزیر خان چه څه وخت د ایسټ انډیا کمپنئ سره معاهده کوله د پاره دهلی له ورلاړی نو مغل باچا اکبر شاه ثانی ده ته د وزیر الدوله خطاب ورکړے۔ د دوی دواړو ترمیان د دوستئ رشته هم وه۔ د هندوستان د صدر مرحوم ذاکر حسین نسب هم د نواب امیر خان د کورنئ څه وُو۔ د نواب امیر خان د زمانے فرنګیانو قلمدارانو لکه پرنسپ (PRINCIP) میلکم (MELCOLM)

ډف (DUFF) مټکاف (METCALF) او د کمپنۍ د سرکاري تاريخ ليکونکو مل (MILL) او ولسن (WILSON) نواب اميرخان يو ظالم پښتون او بلېر ؤونکې ډاکو بللې او ليکلې دې - لاکن د پنډارې نوم يې نه دې پر ايښې - د دې څه معلوميږي چه نواب اميرخان ته پنډارې ويل غلط دې - پر فيسر قانون ګو (QUNANGO) وائي چه زموږ تاريخ تر اوسه پورې د هندوستان د استرې ازميلې جنګيالې پښتانه مدبر ه سره انصاف نه دې کړې د ازموږ د تاريخ تاريک ارخ دې -

نواب امير خان بې شکه او بې مبالغه په هندوستان کې آخرې فوجي مدبر ؤ - په ټول وطن کې د ده د فوجي پوهې او دلاورۍ آوازې وې - رووه راتما يوه بنځه چه د لويه سره څه د ټونک د نوابانو خلاف وه - نواب اميرخان پنډارې نه بولې - د دې خيال دې چه د خپلو کاروا کارنامو له کبله چه د پنډاريانو مشابه ؤو - نواب اميرخان د پنډارې په نامه مشهور ه سو - پنډاريانو هيڅ کله با قاعده د دښمن سره جنګ نه کاوې - او نواب اميرخان نه يوا ځې دا چه په لښکر و خت کې به يې د خپل فوج رهنمائي کوله - بلکه زړ ور نيا او باتورې به يې هم په خپلو دښمنانو منله - د دغه وجې څه خپله جسونت راؤ هلکر بلکه د جودهپور مان سنګه او د اودې پور مهارانا بهيم سنګه د

امیرخان پکړے بدل ورونه وُو۔ دَ امیرخان فوج دَ دهٔ دَ عروج په وخت کې پر دوُو ینځوسو سردارانو باندې مشتمل وُو۔ چه په هغه کې راجه بهادرلال سنګه او کرنل موهن سنګه دوُه هندوان هم وُو۔

دَ سنه ۱۸۳۴ء دَ اجمیر دَ دربار په وخت کې لارډ ولیم بلټنک دَ نواب امیرخان دَ همه ګیر شخصیت څخه دومره متاثر سُو۔ چه دَ امیرنامه ترجمه ئې په خپل سکتر پرنسپ په انګریزي کې وکړه۔ دَ هندوستان تاریخ لیکونکو چه چیرې دَ شیرشاه سوري سیواجي، نواب حیدرعلي او مهاراجه رنجیت سنګه کارنامې بنکاره کړې دي۔ تعلقه ئې نواب امیرخان غونډې مرد میدان بې برخې او محروم ساتلی دی۔ او ینډاري بللئ او بدنامه کړی دی۔ حالانکه نواب امیرخان چه دکوم اوچت اولوړ ځای حقداره دی بنائي چه هغه دهٔ ته ورکړل سي۔

چاپ سوی "اولس" پښتو کوټه

مئی / ۱۹۷۰ء

# باز بهادر او روپ متی ۲

د باز بهادر او د روپ متی د عاشقی او د مینې
نوب قِصّه ډیره مشهوره ده - او خپره ده - د باز بهادر اصلی نوم
میان بایزید وو - دے په خټه پښتون وو - د ده د پلار نوم شجاع
خان وو د شیر شاه سوری زوئے سلیم شاه سوری د مالوے
علاقه وشجاع خان ته په جاګیر کی ورکړے وه - تر دے
د مخه شیر شاه دا علاقه وشجاع خان ته په جاګیر کی ورکړے
وه - تر سلیم شاه سوری وروسته مبارز خان عدلی د هغه
پرځائے باچا سو - د مبارز خان په وخت کی هم شجاع خان
د مالوے حاکم وو او مبارز خان د خپله ځانه وښورا وئ -
شجاع خان په ۹۶۲ ه کی مړ سو -
شجاع خان تر خپله مرګ یو څو ورځے د مخه د ا اراده کړه

وه. چه زه به د مالوې باچا کېږم. او د خپل نامه خطبه به جاري
کوم. او د خپل نامه سکه به را باسم لاکن تر دې د مخه دې
تر دنیا تېر شو. او دا ارمان یې نه و خوت د شجاع خان د مرګ نه
پس د ده مشر زوی بایزید د هندویه څخه سارنګ پور له راغی
او په ۹۶۳ ه کې یې د باچهۍ د سایوان پر سر باندې لوړ کې. او
د ده د نامه خطبه یې اوویله او ځان یې باچا کړ. او د باز بهادر شاه
نوم یې د ځان د پاره خوښ کړ. وروسته تر باچا کیدو باز بهادر
د رایسینې او د بهیلسه علاقې هم ونیولې. او څو جنګونه یې هم وکړو.
باز بهادر په سازونو په سرونو (فن موسیقي) ډیر پوهیدی
او دې شي یې ډیر شوق درلود کوم وخت چه د راجه کهنګه
مائنې دانې ورکاوتې باز بهادر په جنګ کې مات کې او دې خپل
پایه تخت سارنګ پور ته راورسیدی. نو یې دولته عیش
وعشرت شروع کې. او بیا یې بې جنګ او نه کې. د ښځو مجلسونه
یې شروع کړو. یوه ښځه چه د هغې نوم روپ متي ؤو. او
په ساز و سرور هم ښه پوهیده. باز بهادر پر هغه باندې مئین
شو. او په ټول هندوستان کې د دوی د وو د عشق او د
مینتوب نارې ولاړې. دیوه به، بې هغه بله یو ساعت
هم طاقت نه کیدی. روپ متي هندوانې وه.

په دغه وخت کې د هندوستان باچا اکبر ؤو. چه
په ذات مغل ؤو. دا اکبر ه تر غوږه داخبره ورسیده

چه باز بهادر دَ مالوے باچا کړده ورځ دَ بنځو په میانځ کې ناست
وُو۔ شاوخوا بنځې پرکوټه وے او دے دَ دوئ غزلې اورې
او دَ وطن انتظام سره خراب دے۔ نو دَه په ۹۶۸ھ کې یو لښکر
مالوے دَ نیولو دَ پاره تیار کړے۔ دَ دے لښکر مشر اَدم خان وُو۔
دا لښکر دَ مالوے په خوا رهی سو۔ باز بهادر هم خبر سو چه مغل
راغلو۔ په دغه حال کې نو څه کېدلای سو۔ بیا هم دَه چابک چابک
شاوخوا حالونه سره واستول چه سپاهیان ومشران دې ژر دَ جنګ
دَ پاره سره راټول سي۔ تر دے میانځ دَ مغلو لښکر سارنګپور
ته نژدے را ورسیدئ۔ او مازې یو کوس ځینې لرے وُو
یو څه لږ ډیر لښکر چه سره رایوځای سوئ وُو۔ باز بهادر
هغه ور رهی کئ۔ او دَ مغلو مخ له ور ووُت په جنګ کې یې شکست
وخوړ۔ او دَ خپل ملک دَ سرحد په خوا ئے الاکړه۔

باز بهادر چه جنګ له ور ووُاتئ۔ نو یې په ښار کې یو څو
کسان مقرر کړو۔ او هغو ته یې وُوئیل چه که چیرې
موږ په جنګ کې مات سو۔ نو تاسې روپ متي او هغه نورې
ښځې مړې کئ چه باز بهادر شکست وخوړئ نو هغو کسانو پر روپ متي او
نورو باندې
یې توره را وکښله او دوئ یې په تازیانه او تلوار مړے کړے
دَ دے کسانو دا خیال سو چه ټوله ښځې مو مړے کړے
او زغرد دَ باز بهادر دَ مانۍ په خوا ور روان سو۔ چه دَ دَه
دَ کور ښځې مړې کې۔ دَ باز بهادر دَ کور ښځو چه دَ روپ متي

اوَ هغه نورو ښځو دَ مرګه واو رېدل - نو دوئ هم دَ مرګ دېرې څه له کوره وُوتلې - او ځله شو پتو سوُلې - دَ هغو کسانو هم تلواروه - و داته نه سو خلاص چه په دغه ښځو لېسے وکړي او مړې ئې کي -

باز بهادر چه الا کړه او وتښتیدئ نو آدم خان په ښار ورننوُوت - ادم خان روپ متي وپېژندله - یو ځو تښتیدلی ښځې ئې پیدا کړې - دَ هغو څه ئې دَ روپ متي پوښتنه وکړه چه څه سوه - هغو ورته وئيل چه هغه ئې په پړانګي ماني کي سَره دَ زیاترو نورو بدلزنو ښځو مړه کړه - اَدم خان دَدے خبرے دَ معلومولو دَ پاره یو سړئ دَ هغه مانئ ته ور واستاوئ - هغه دا حال را وړئ - چه روپ متي او دوے درے نورے ښځې په هغه ورځ تپ سوي وے - مړے سوي نه دي - ادم خان چه دا خبره واوریده ډیر خوشحاله سو - او روپ متي ته ئې دا حال ور ولیږئ - چه ته زر تر زره په ځان باندې زیار وکاږه - هر وخت چه ته ښه سوے - زه به دې په عزت او په استراحت باز بهادر له ور واستوم - روپ متي دا خبره و نغوږله ډیره خوشحاله سوُله -

دَ روپ متي تپونه چه جوړ سو - نو ئې وآدم خان ته حال ورکئ - چه اوس زه جوړه سوم - اوس مې نو تر باز بهادر پورې ور ورسوه - پر آدم خان باندې نفس دَ شیطان غلبه وکړه - او روپ متي ته ئې حال ور واستاوئ - چه که

باز بهادر دَ اکبر فرمانبرداره سوی وائے ۔ نو به ما ستا خواست قبول کړئے وائے ۔ او ته به مې ده له ور استولې وې اوس خو باز بهادر دَ اکبر باچا حکم نه منې ۔ او که ما ته دَ اکبر باچا اجازت اوبے حکمه وه ته ور استولے نو اکبر به ډیر خوابدئ سی ۔ پس له دے پرنیه شپه آدم خان، روپ متې، له سرې ور واستول او دَ دے دَ وصل طلبګاره سو ۔ روپ متې حیران و اخسته چه دا اخځکه قصّه پلېنه سوه ۔ له خوابدئ یې په خوله کې ګوته نه لندیدله ۔ دا پر باز بهادر باندې عاشقه وه ۔ او دَ هغه سره یې قول کړئ وُو ۔ چه زۀ به تر مرګه پورې بے تاما سوا پر بل چا باندې مینه نه راوړم ۔ دَ آدم خان نوکرانو دَ خبرو څخه دا معلومیده له چه که چیرې روپمتې په رضا نه سی راسره ولاړه نو به یې په زور بیایو، نو په دے سره روپ متې و دے کسانو ته په عاجزې او په خواست وویلے چه زۀ خو دانه وایم چه زۀ دَ آدم خان له نه ځم ۔ که چیرې دئ دلته راسی نو به ډیر ښه وی ۔ نوکرانو دا حال آدم خان له په ډیره خوشحالې ور ورساوئ ۔ آدم خان بیخې ډیر او تر حد تیر خوشحاله سو ۔

آدم خان له دے بیرې چه دا سې نه وی چه اکبر را خبر سی ۔ ګالې یې بدل کړو ۔ او دَ دوُو درو کسانو سره

د روپ متي کره ورغئ چه په ماڼئ کې ودننه سو۔ روپ متي
نه وه ښکاره د هغې د مينځو او نورو ښځو څخه يې پوښتنه وکړله چه
روپ متي چيرې ده۔ هغو د پلنګ وخواته ګوته ونيوله چه
هلته بيده ده۔ آدم خان په ډير شوق سره د پلنګ په خوا
ورتير سو۔ او د روپ متي د مخه څخه يې پټولی لرې کئ۔ کے
کاته روپ متي مړه پرته ده۔ عطرې لګولې دي۔ او د کالو
غاړکئ يې په غاړه ده۔ آدم خان ډير حيران سو۔ او د هغو نورو
ښځو څخه يې پوښتنه وکړه چه دا څه قصّه ده۔ هغو ورته
وويل چه کوم وخت ستا سړي د دې د بيولو د پاره راللو او
بير ته د غسې درغلو نو روپ متي په باز بهادر پسې ډير وژړل او يو څه
کافور او يو قسم تيل (د تلې تيل) يې وچښل۔ چه ومړه کيدو ته
نژدې سوه۔ نو ولاړه سوه۔ پر پلنګ پريوتله۔ آدم خان د دې
پر وفادارئ باندې آفرين او وايه او د دې د کفن او د ښخولو
حکم يې ورکړو۔ په دغو شپو کې آدم خان معزول سو۔ او د ده
پر ځائ پير محمّد خان شرواني د مالوې حاکم مقرر سو۔ باز بهادر
د برار او د جونپور د باچهانو څخه فوج وغوښتئ پر مالوه يې حمله
وکړه۔ پير محمّد د ډيلي په خوا ميدان کړو۔ او د نربدا په رود
کې ډوب سو۔ او مړ سو۔ باز بهادر دويم وار د مالوې باچا سو۔
لږ موده پس عبدالله خان اوزبک په ۹۷۰ هکې پر مالوه حمله
وکړه۔ باز بهادر بې له جنګه د خپل ملک څخه راووت او ډير

محمّد مالوه ـ خاندیش ـ او دکن په ځنګلو کې ګرځیدئ ـ او د
مغولو سره یې کله کله جنګ کاوئ ـ

آخر چه په دا ډول هیڅ نه کیږي ـ نو یې د اکبر
ملازمت شروع کئ ـ او په دغه نوکرئ کې باز بهادر مړ شو ـ

چاپ سوئ ـ میاشتیزه "ظفر اسلام" کوټه

اګست ۱۹۶۱ء

# شیرشاه سوری!

شیرخان چه بیا وروسته د شیرشاه سوری په نامه سره مشهور شو اصلی نوم یې فرید خان وو. دی د افغانستان د یوې قبیلې "سور" یا "سوره" څخه وو. چه د پښتنو یوه پښه ده. (قبیله ده) د ده نیکه ابراهیم د بهلول لودهي د حکومت په زمانه کې راغلی وو. بهلول لودهي هم یو افغان باچا وو. ابراهیم اول وار په ضلع هوشیارپور کې د بجواړه د جاګیردار سره ملازم شو. بیا وروسته نارنول ته ورلاړی. او هلته یې څو کلې ونیوله. د ابراهیم یو زوی وو چه نوم یې حسن خان وو. د احسن خان د صوبه بهار په علاقه کې د "سهسرام پور" او د "خواص پور تانډه" جاګیره پیدا کړه. شیرشاه سوری یا فرید خان د دغه حسن خان زوی وو. حسن خان په جونپور کې د عربي او د فارسي تعلیم حاصل کړی کوم وخت چه ځوان شو. نو پلار پرې خپل جاګیر بانده ولګاوه. چه انتظام یې وکې. فرید خان د خپل جاګیر ډیر

بنه انتظام وکړو۔ مګر دے د خپلې میرے څه ډیر تنګ وُو۔ او یو
وار دوه واره له کوره څه هم ولاړے۔ لاکن بیرته به پلار راوستے۔

کوم وخت چه حسن خان مړ شو۔ نو جاګیر د حسن
خان په لاس ورغے۔ څه موده ورسته بیا فرید خان د بهادر
خان نوحانی چه د هغه لقب سلطان محمد وُو۔ او د صوبه "بهار"
حاکم وُو۔ ملازمت یے شروع کړے۔ یوه ورځ فرید خان په ښکار
وتلے وُو۔ په ځنګله کې مزرے په مخه ورغے۔ فرید خان
د ستې هغه مزرے په توره مړ کړے۔ سلطان محمد د ده پرے
زړه ورتیا باندې ډیر خوشحاله شو۔ او ده ته یے د شیر خان
خطاب ورکړے۔ کوم وخت چه بابر دهلی فتح کړے او د هندوستان
باچا شو۔ نو شیر خان د جونپور د صوبیدار په شناخت سره
چه هغه هم مغل وُو۔ د بابر دربار ته ورغے بابر چالاک په دے
پوه سو چه دا شیر خان یو غیر معمولی سړے دے۔ داسے نه
چه بیا زما د مرګه پس زما عیال ته یو غم نه کې پیښ۔ نو ده
د خپل وزیر څه پوښتنه وکړه۔ چه دا شیر شاه به قیدے کړم۔
مګر وزیر ورسره نه و منله۔ شیر خان تک واخست او بیرته
د بابر له درباره څه پټ ولاړے او سلطان محمد ملازمت یے دویم
وار شروع کړے۔ سلطان محمد دے د خپل کشنی زوئے
جلال الدین استاذ مقرر کړے۔ کوم وخت چه سلطان محمد
مړ شو۔ نو شیر خان جلال الدین معزوله کړے۔ او پر بهار باندې

قبضه وکړه - دَ بنګال باچا دَ جلال الدّین د بدل اخستو دَ پاره پر بهار بَاندې حمله وکړه - مګر شیر خان ورغه ته شکست ورکړې - په دا وخت کې شیر خان دَ "چنار" دَ قلعه ارکونډه وکړه - او دا مضبوطه قلعه دَ ده په لاس ورغله - بیا ئې دَ "رهتاس" قلعه هم په چل تدبیر سره ونیوله -

په دغه وخت کې دَ سلطان ابراهیم لودهي ورور محمود لودهي چه د بابره څخه ئې شکست خوړلے وُو - بهار ته راغئ - او پښتنو په اتفاق سره باچا کړې - شیر خان هم دَ ده مقابله مناسبه نه وُبلله - او کوم وخت چه محمود لودهي پر جونپور قبضه وکړه نو شیر خان ته ئې دَ بهار دَ ملک دَ ورکولو سند ورکړې - په ۱۵۳۱ع کې دَ بابر دَ مرګ نه پس دَ ده زوئے همایون پر جونپور حمله وکړه - او محمود لودهي ته ئې شکست ورکړې - محمود لودهي پټنې ته ولاړې - او دَ سلطنت د کار وڅخه بیزاره سو - او س دَ پښتنو مشر شیر خان سو - همایون دَ چنار په قلعه کې دَ شیر خان محاصره وکړه - مګر دَ ګجرات دَ بغاوت له سببه بیر ته ولاړې - کوم وخت چه همایون ګجرات فتح کړې نو ده ته دَ شیر خان دَ زور او طاقت حال را ورسیدئ - په دا وخت کې چه همایون دَ بهار څخه لیرې جنګیدئ نو شیر خان پر بهار - بنارس او جونپور باندې قبضه وکړه - او بیا ئې دَ بنګال دَ پایه تخت " ګور " محاصره وکړه - همایون چه راغئ - نو او ل ئې په شیر بیا شتې کې

دَچنار قلعه واخسته - او بیایې "کور" لعم واخست - شیرخان دَ بنګاله څخه پر یوه بله لار بهار ته ولاړې - او د رهتاس په قلعه کې وهمایون ته کښیناستې - په داوخت کې دَ باران موسم هم راورسیدې - او دَ همایون سپاهیان ټوله ناجوړه سوه - اسان اَو رسدیې ورځ په ورځ کمیدې - شیر میاشتې ورسته په جون ۱۵۳۹ء کې همایون له بنګاله را روان سُو - شیرخان دَ ګنګا پر غاړه پر "چونسه" باندې تیار ولاړ وُو - همایون دَ صلحې دپاره خبرې اترې شروع کړې - لاکن دَ صلحې پر شرطو باندې لانه وُو سره جوړ سوې - چه شیرخان دَ همایون پر فوج باندې حمله اوکړه - دَ همایون فوج چه داغو ولید - نو ګردو میدان کړو - پښتانه چه پسې را روان سوه - دوئ زیاترو ځانونه په دریاب کښې واچول - تقریبا اَته زره کسان په دریاب کې غرق سوُل - همایون هم په دریاب کې آس واچوئې - اَو پر دوبیدو وُو - چه یو مشکې چه نوم یې "نظام" وُو - همغه بچاوُ کې - بیا چه همایون آګرې ته ورسیدئې - نو نظام ته یې دَ نیمې ورځې باچهي ورکړه - او همغه دَ چمړې سکه وچلوُله -

په سنه ۱۵۴۰ء کې بیا له اَتو میاشتو دتیارې همایون سره دَ یو لک فوجه دَ شیرخان وخواته را روان سُو - تر دې څو ورځې له مخه مغلې فوج دَ "کالپې" سره نزدې دشیرخان زوئې قطب خان چه پلار دَ آګرې دَ فتح کولو دپاره روان کړې

وُو۔ مرکړے وُو۔ شیرخان هم سره د خپلو پنځوسو زرو سپاهیانو د بنګال پر دابله غاره ودریدۀ۔ پس د یوے میاشتے کوم وخت چه د همایون فوج ځائے بدلاوه۔ شیرخان هم دستے حمله پر اوکړه پر "قنوج" باندے ډیر لوئے جنګ اوشو۔ همایون په ډیره دلاورئ سره اوجنګیدۀ۔ لاکن د پښتنو مخے ته هیڅ نه شو کولائے۔ او د هٔ فوج د جنګه څه میدان کړو۔ همایون هم ناچاره شو او د ځان د خلاصولو د پاره ئے میدان کړو۔

کوم وخت چه همایون د شیرخان څه شکستو نه اوخوړل او هندوستان ئے پرېښوو۔ نو شیرخان پر دهلی باندے په سنه ۱۵۴۰ء کے قبضه اوکړه۔ او د "شیرشاه" پر لقب سره د هندوستان پر تخت کښېنوست۔ په دا وخت کے د شیرشاه عمر شپیته کاله وُو۔ شیرشاه یو لوئے جرنیل هم وُو۔ په لږ موده کی ئے د بنګاله څه تر پنجابه پورے ټوله علاقے و نیولے (فتح ئے کړے) بیا ئے د راجپوتو وخواته مخ کړۀ۔ او د مالوه، رنتهمبور، میواړ او مارواړ راجا ګانو ته ئے شکستونه ورکړل۔ او هغو د ده باچهی ومنله په سنه ۱۵۴۵ء کے شیرشاه سورے د کالنجر پر قلعه باندے حمله اوکړه۔ په دا محاصره کے یوه ورځ د بارودیو سرنګ والوتۀ۔ او په بارود اور ولګیدۀ۔ دا بارود د شیرشاه سورے وخیمه ته نزدے پراته وُو۔ په دے سبب سره شیرشاه هم په دغه اور سره ډیر وسو۔ په دغه ساعت کے قلعه هم فتح سوه۔ لږ ساعت وروسته بیا شیرشاه

هم مړ شو۔

شیر شاه په پښتنو کې تر ګردو لوئے باچا تیر سوی دئ۔ داخولا پریږده بلکه شیر شاه د هندوستان په ټولو مسلمانو باچاهانو کې لوئے باچا تیر سوی دئ۔ ده صرف پنځه کاله حکومت وکئ۔ او په دغه پنځه کاله کې یې د سلطنت داسې انتظام وکئ چه ټول مورخین یې تر اوسه ستائي۔ شیر شاه سوری یو لوئے جرنیل، یو قابل باچا او ډیر عادل او انصاف دار وُو۔ ده یواځې ملک نه کئ فتح بلکه په دغه فتح سوو علاقو کې یې یو داسې مضبوطه حکومت قائم کئ۔ او داسې زبردسته انتظام یې وکئ۔ چه تر اوسه پر هغه باندې په څه څه تغیر سره عمل کیږي۔ مغل باچاهانو هم د شیر شاه سوري طرزِ حکومت خپل کئ۔ صرف یو یو شئ یې کې بدل کئ۔ په دې سبب سره و شیر شاه سوري ته د اکبر پیشرو وائي۔ بیا تر هغه ورسته چه کوم وخت انګریزان هندوستان ته راغلو۔ او حکومت یې ونیو۔ نو هغه هم د شیر شاه سوري د انتظامه څخه ډیره فائده واخستله۔ او د ده ډیر شیان یې هغه رنګه رایج پرلیښوول۔ شیر شاه سوري د علاؤالدین خلجي په رنګه د سلطنت د انتظام قابلیت درلود۔ مګر سره د دې د دې سختې او جابر نه وُو۔ لکه علاوالدین خلجي۔ شیر شاه سوري د محمد تغلق په شان سره ډیر اعلیٰ او لوئے لوئے خیالات د

حکومت په باره کې درلود - لاکن د غوځیالاتو د پاره سلطنت د محمد تغلق پرچم نه کې برباد - لکه اکبر چه د هندوانو سره بنه وُو - دغسې شیرشاه لعم ور سره بنه وُو - لاکن شیرشاه د اکبر رنګه د مسلمانانو مخالف نه وُو - مختصره دا چه شیرشاه سوری - د یو مناسب معتدل او برابر شخصیت خاوند وُو.

د مضمون د اوږدیدو په سبب سره زۀ د شیرشاه سوری انتظام سلطنت ډیر کم او کوتاه بیانوم شیرشاه خپل ټول ملک په سرکارو او په پرګنو کې تقسیم کې - په دے علاقو کښې یې افسران مقرر کړل - چه مالیه به یې ټولوله. په پرګنه کې به د امین سره یو خزانچي او هندو او مسلمان پرچه نویس مقرر وُو - چه په فارسي او هندي کې به یې خپل حساب ایښووې - شیرشاه سوری د فوج د پاره سپاهیان بهرتي کړل - او د سپاهیانو بنږه بدیٔ لیکه - او د آسونو داغ د ۀ رائج کړو - په ملک کې یې نوې چهاونیانې جوړې کړې - د زړو قلعو مرمت یې وکړ - شیرشاه سوری ډیر انصاف پسند ه باچاوُو. د هندوانو او د مسلمانانو ترمیان به یې د انصاف په وخت کې هیڅ فرق نه کاوُو - په دغه سبب سره د دۀ په وخت کې هندوان او مسلمانان یو د بل په خوشحالئ سره اوسیدو - په ښارو کې به قاضیانو په شریعت سره فیصلې کولے - د هندوانو فیصلې پنچایت کولے - په ښارو کې د امن و امان د پاره کوتوال او په

کلوکی چوکیدار مقرر وُو- شیرشاه سوری دَ مځکې پیمایښت وکړے - او بیا ئې یوه څلورمه مالیه پر ولګوله - دَتعلیم دپاره ئې مدرسے جوړے کړے - او دَ علما و دپاره ئې وظیفے مقررې کړے په ملک کې ئې محتاج خانے او لنګرخانے جوړے کړے۔

له بنګاله څه تر پیښوره پورے ئې یو لوئے او پراخ ځړک جوړ کړئ - چه تر ننه پورے موجود دئ - او دَ "جرنیلي سړک" په نامه سره یادیږی - دَ دے سړک پر غاړه ئې درختې ولګولے - چه مسافران په سایه کې وی - شیرشاه سوری دَ ډاک هم ډیر ښه انتظام وکړے - او دَ ډاک دپاره ئې چوکۍ جوړے کړے - شیرشاه دَ مذهب او دَ شریعت پابنده وُو - مګر متعصب نه وُو۔

چاپ سوئے کالیځ بولان - ګورنمنټ کالج

کوئټه ۱۹۵۸ع

# نجیب الدوله
# او د هغه کورنۍ

په هندوستان کې د ډیلي د پښتنو باچهانو لکه غلجیانو لودیانو او سوریانو ماسیوا نور لهم ډیر پښتانه حاکمان ونوابان او خانان وسالاران تیر سوي دي - لکه باز بهادر د مالوے خان جهان لودهي، امیرالامراء نواب نجیب الدوله، نواب علی محمد خان، نواب احمد خان بنګش، امیرالامراء ضابطه خان، غلام قادر خان روهیله، حافظ رحمت خان بړیڅې نواب دوندے خان، جنرل بخت خان او نور زیاتره پښتانه جرنیلان ومدبران د مغلو د باچهۍ ناموزۍ (کمزورۍ) او پرېوتو (زوال) په زمانه کې تیر سوي دي - چه د مغلو د سلطنت ونړیدونکي دیوال ته یې اوږه ورکړے او ټم کړے یې دی - که څه هم مغلو د هندوستان باچهي د پښتنو څخه اخستے وه - د مغلو د باچهي مانۍ (محل) چه سره کیپدله. او رسیدله نو په دا وختو کې چه کوم چا د دا باچهي

ورانیدو څخه د راکړ حولو زیار ایستلے او خپل پر واوس کړے دے چه په هغوی کے لوړ نوم د نواب نجیب الدوله دے ـ بیا د ده د زوئ نواب ضابطه خان او لمسی غلام قادر خان نومونه راځی ـ

د نجیب الدوله یوسفزی چه پرنامه یے دیو ـ ښار "نجیب آباد" لعم آباد دے ـ د ژوند حال ویرو تاریخ پوهانو لکه الطاف علی بریلوی ـ اکبر شاه خان نجیب آبادی او مفتی انتظام الله شهابی لیکلی دی نجیب الدوله د روهیلکنډ او سیدونکے وو ـ "روهیلکنډ" د "روهیله" پښتو ولس وو ـ دا "روهیله" پښانه د پښتو د کنهو او کړه ودو قام وو ـ چه د پښتو نخوا څخه هندوستان له تللے وو ـ او په نومورے علاقه کے میشته سوئ وو ـ د هندوستان خلکو دوئ په دے "روهیله" بلل چه دوئ د "روه" څخه راغلی وو ـ او "روه" یے په هغه زمانه کے و پښتونخواته ویل په دے لیک کے زیاتره مواد ماد مفتی انتظام الله شهابی د کتاب "نواب نجیب الدوله او رجنګ پانی پت څخه اخستی دی ـ

مفتی انتظام الله شهابی په خپل کتاب نواب نجیب الدوله او رجنګ پانی پت کی لیکی چه د هندوستان د نامتو تاریخ لیکونکو کم نظری لعم عجیبه ده ـ د غدارانو په حال خوئے نخان پر ځان تور کړی دی ـ مګر د ملک و د ملت سر بازان او فداکاران یے د نوم ورکے ورځے په خاکے غور ځولی دی ـ چه د لعغه

له کبله د هغو پر کارنامو باندې تر ډیرې مودې پورې پرده
پرته وه. او ډیر ظلم یې بیا دا وکړ چه صحیح حالات یې پټ کړه.
او د حافظ خان څخه یې قصې چپې رپې ولیکلې. "طباطبائی" رنګه تاریخ په
یو خو چپل روهیله ورونه راخې د کردار له اعتباره یې د مرهټانو
سره ایږدی. نو د نورو څخه څه ګیله ده. د روهیله سردارانو
لکه د حافظ الملک، حافظ رحمت خان د نواب دوندې خان او
د نواب نجیب الدوله حالات خو یې په مجبورۍ اولیکل
مګر لکۍ یې ضرور پورې وتړلې. مولوی سیّد الطاف علی صاحب
بریلوی. د حافظ ملک رحمت خان (اباچا د روهیلکنډ) او د نواب
دوندې خان سوانح عمریانې ښه په پلټنه (محققانه) ولیکلې. مګر
ضرورت د دې وو. چه تر ټولو د لوئ کارګذار روهیله، سردار
نواب نجیب الدّوله د ژوند حال (سوانح عمرې) هم ولیکل شي نو
د دې کرښو لیکونکي (راقم الحروف) نواب نجیب الدّوله بهادر
تر خپله وسه پورې ښه په تحقیق لیکلی دی.

د شیرشاه سوري په زمانه کې ډیر پښتانه "دروه" څخه
هندوستان له راغلو او په بریلي، آنوله، او فرّخ آباد او نورو کې میشته
شوه. نوې دا علاقه یو مخ د روهیلکنډ په نامه سره یادول شروع کړه.
بیا څو نو د افغانستان څخه په ډلو ډلو پښتانه روهیلکنډ له راغلو. او
واکې یې ولې. د دغه پښتنو وې ډلې وې. د روهیلانو یوې کورنۍ
"بوکهیر" باندې قبضه اوکړه. چه بیا یې نوم "روهیلکنډ" شو. او بلد

دله دَ بنګشو لښتنو وه ـ دَ بنګشو نیکه نواب محمد خان په ۱۷۱۴ع کې
دَ فرخ سیر په زمانه کې دَ "بهوج پور" او دَ "شمس آباد" جاګیردار مقرر کړی شو.
دَ فرخ سیر باچا پر نامه دَ فرخ آباد، یو ښار جوړ کړې ـ او لمغه یې پای تخت
کې ـ په ۱۷۱۹ع کې دَ فرخ سیر دَ مرګه بعد نواب محمد خان
بنګش بدایون وینو بیا په آخرې ورځو کې مغلو باچاهانو په ناچاری
دَ نواب محمد خان بنګش خپلواکی (خود مختاری) ومنله ـ په دغه
زمانه کې دَ داود خان لوئ کړې زوئ (متبنیٰ) نواب سید
علی محمد خان فتوحات په کهیړ کې شروع کړو ـ دَ کهیړ بلیش
(حدود) د اوسنی روهیلکنډ برابر وُو ـ دَ بریلی ـ مرادآباد ـ سنبهل
او دَ بدایون ضلعې دَ کهیړ په علاقه کې وې ـ نواب، سید علی محمد خان
دَ رامپور دَ نوابانو نیکه وُو.
مفتی انتظام الله شهابی لیکی چه نجیب خان بلی
(مخاطب) په نواب نجیب الدوله ثابت جنګ زوئ دَ سردار
اصالت خان زوئ ملک عنایت خان زوئ دَ منیر خان، زوئ دَ
نظیر خان زوئ، دَ اسماعیل خان زوئ ـ دَ مانیوی عمرخیل وُو.
عمرخیل په یوسف زی کې یرې ـ دا قبیله په کالادار کلوانی
او مان دی کې پرته وه ـ اصالت خان دَ خپل قام سردار وُو ـ دَ ده
ورور بشارت خان اسان خرخول چه فرخ سیر په روستوئ زمانه
کې روهیلکنډ له راغې ـ څو ورځې ورسته یې دیو څو روهیله کانو
یعنی پښتنو په مرسته بلاس پور او دادپور یو تحصیل اونیو.

اوبرخپل نامه یې بشارت نگر یو بنار جوړ کړ - او په استراحت یې ژوند
تیراوه - دی به وطن ته تلی ورتلی په ۱۱۹۰ هـ کې د اصالت کره
نجیب خان ورزو کیدی - پلار د جنګ چونه او د وسلې چلول ورزده
چه لوی سو - نوشاوخوا خلک یې څرد د نامه څخه ریږ دیدو - اکا
چه یې کور ته راغی او د واره د دلاوری خبری یې په غوږ سوې -
نوی د ورور په اجازه په سنه ۱۱۵۰ هـ کې هندوستان ته ورسره بوتی -
بشارت خان یوه لور و نواب سیّد محمد خان ته ورکړی وه.
او دا بله یې و نجیب خان ته ورپه نکاح کړه - د دغې نجې
څخه نواب ضابطه خان پیدا سو - او نواب علی محمد خان
بیا خپله لور چه د بشارت خان د لور څخه یې وه - په کشنیوالی
وضابطه خان ته ورکړه - د یغی څخه غلام قادر روهیله پیدا سو.
مفتی انتظام الله لیکی صدر جنګ چه یو سړی وو - احمد شاه
د محمد شاه زوی مغل باچا د وزیر توب څخه والیستی - د
نظام الملک آصف جاه لمسی او د فیروزجنګ زوی غازی الدین
هم د لاری او بیچ چونه (سازشونه) شروع کړه - صفدرجنګ
راولاړسو - د راجه سورج مل جاټ د صوبه باوني کهاري
پور قنوج دارانو ر کشائین. ملهار راو هلکر او چهاسیندهیا
د خپلې مرستې د پاره راوبلل - باچا پرپښتنو صوبه دارانو برغ
وکی د روهلکنډ نوابانو د نورو صوبه دارانو غوندې
غداری نه وه کړې - بلکه د دهلی حکومت څخه یې

دَ نوابئ پروانه اخستي وه - دَ نادرشاه دَ حملے ورسته خو په روهیلکنډ کې دَ پښتنو سردارانو ډیر زور وُو - په روهیلکنډ کې پښتنو سردارانو لکه سیّد علی محمّد خان نواب حافظ الملک حافظ رحمت خان نواب دوندے خان او نواب محمّد خان بنګښ کښی کښی حکومتونه په خپله پولی اوزړه ورتیا جوړکړی وُو - نو چه دَ ډیلي دَ باچا دَ وزیر انتظام الدّوله دَ خوا تخنه دَ مرستی بلنه راغله - نو دوندے خان و نجیب الدوله ته وُویل چه جاټان و مرهټان دَ صفدر جنګ پخوا دی - که دی دوئ پر موږ راوښکاری نو موږ ته ډیر تاوان رارسولائ سی - او و بله خوا ته باچا و انتظام الدوله زموږ هیڅ کومک نه سی کولائ - مګر نجیب خان و ټنګ ته تیار سُو - دا بله ورځ نجیب خان دَ بسولی تخنه څه خو فرزده کسان ورسره رهی کړو - او دَ ډیلي پخوا روان سو - پر لاری چه هر څو خوار ▬ برباد او بے کوره خلک په مخه ورتلو هغه یئ هم په فوج کې اخستل او دَ ځانه سره یئ رهی کول - چه دَ برات په میاشته به ۱۱۶۶ھ کې ډیلي له ورسیږ نو ډیرش زره بنګښ ورسره وُو - عماد الملک غازی الدّین چه نجیب خان دَ بسولی سالار ولید نو ډیر خوشحاله سُو -

نجیب خان په یو څو ورځو کې و صفدر جنګ ته چه دَ ډیلي تخنه دوه میله بیرته دَ مرهټانو او دَ جاټانو سره پروت وُو - ماته ورکړه - دَ ده سپه سالار کښتائیے دَ مرګئ صفدر بخښنه (معافی) وغوښتله

او دَ اوده صوبیداری له ولاړی ـ مابنام چه دَ بړی مونډلو ورسته نجیب خان خپل ماڼی ته بیرته راغی ـ نو باچا ورسره وکتل ـ او نوبت و خلعت او دَ نوابی بیرغ یې ورکی احمد شاه دَ غازی الدّین په زیرمه خواری (سفارش) و نجیب خان ته خطاب، دَ پنځه زری منصب نغاره ـ د بخشی گیری منصب او سهارنپور ولکه په جاگیر کی ورکړه ـ نجیب الدّوله شاو خوا بدا او بد عمله خلک رایت کړو ـ

مفتی انتظام الله لیکی په ۱۷۵۳ع کی دَ "ماښوت" ولی پرغاړه نجیب الدّوله دَ خپل نامه ښار جوړ کی ـ دَ ښار دَ جوړ ولو کار یې و یو خپل تفند وکاردار ته پرغاړه ورکی په ۱۷۵۵ع کی چه یې دَ "پتهرگړه" کلاجوړوله ـ نو یې کار و یوه مسلمان ته په لاس ورکی ـ دَ مظفرنگر د ضلع تخمه یې بنیاکان ـ کهتریان او برهمان ښه ډیر راوستل ـ او دلته یې وارول وهند وانو ته په خپله دَ نجیب الدّوله دَ خوا تخه جوړ سوی تیار کورونه ورکړل سول ـ او وليښتنو ته یې وویل چه تاسی به خپل کورونه په خپله جوړوی ـ دَ دې پسې نجیب الدّوله په "پتهرگړه" کی ښه دَ خیال جامع مسجد جوړ کی ـ کوم وخت چه احمد شاه ابدالی ډیلی ته راغی او چه بیرته تلی نو مغول باچا عالمگیر ثانی ورته وویل چه ته چه ځي ما دَ دې غازی الدّین له غمه خلاص که ـ دا سړی می ډیر بیزاروی نو دا او چه دَ تگ په وخت احمد شاه ابدالی دَ عالمگیر ثانی په خوښه سره دَ مقصود آباد ټر تالاب باندی نجیب الدّوله په ۱۷۵۷ع کی

د پتول مغلیه سلطنت کارچلانده وګماری۔

غازی الدین ثم امیرالامرا، منصب خپل موروثی حق بایللی۔
ده نجیب الدوله و صفدرجنګ سره جنګولی او په دربار کی یې تپول ځای
ترلاسه کړی وو۔ اوس دی و عالمګیر ثانی مغول باچاته پر دابله خو ا
واوښتی۔ ده ولی عهد احمد و نیوو او مړی کړ۔ مرهټیانو د لوټ او د شکولو
شوقیان وو۔ خو بیایی لم په زړه کی د دهلی د باچا یو څه سام واحترام
وو۔ که څه هم په ۱۱۳۶ ھ کی۔ باجی راو پیشوا د دهلی د ښار په شا وخوا کی خلک
لوټلی او شکولی وو۔ خو د کالکا په میله کی یې لښکروان لم نه وو بیرې ایښی
بلکه شکولی یې وو۔ دوی غوښتو چه د مغول تخت او باچهی په
پیلامه خپله هغه د مذهبی مراسمو آزادی حاصله کړی۔ مګر
تردی ورسته مرهټیانو بیا د پایه تخت و خواته سترګی نه واړولی
یواځی لمغه وخت دوی د دهلی پر خوا رامات سوه۔ چه عمادالملک
غوندی ستر منصب دار دوی د خپل غرض او مطلب د پاره
راوبلل۔ د ده په راغوښتلو ملهار راو هلکر او جیا پاسیندیا رالو
او اوس بیا داوو چه د احمد شاه بابا تر تګ ورسته د غازی الدین
عمادالملک په رابلنه او د نواب نجیب الدوله د تاوان د پاره دویم وار هلکر
او راګهوبا پر دهلی باندی چاوو واهلی نو داوو چه غازی الدین
هلکر پر دهلی باندی راوخرخاوی۔ نواب احمد خان بنګش و
فرخ آباد ته یې وویل چه تا به امیرالامراکم۔ تر ۴۵ ورځو پوری
نجیب الدوله د د غه دروسره و سره و جنګیدی۔ لاکن مغول باچا

عالمګیر ثاني د بیر ید ئ او د نجیب الدوله ته
یې د دوغی جوړې د پاره وویل. نجیب الدوله
د هلکر ته لیک ور واستوی چه زیاتی جنګ
نه در سره کوم او خپلې علاقې له حَم. دار نګه
د کلاځنه سره د خپله فوجه او سامانو دا قوت.
د هلکر د خیمود سره یې نژ دې یوه ورځ تیره کړه
مخالفو بسکرو د نجیب الدوله هرډول عزت وکړ.
ور وسته نواب صاحب نجیب آباد له ورسیدی.
دئ چه ورلاړی پاچا دستی د کلا در وازې
خلاصی کړې او غازی الدین ځ خپل وزیر
و مانځ.

د دنې پس غازی الدین مرهټیانو په پنجاب
هم د وبر دکړو او د مرهټیانو د پاچا چه پیشوا
یې بالی او نوم یې بالاجی باجی راؤ وو ورونړه
رګوناتهه راؤ او شمشیر بهادر او بل هلکر پرپنجاب
ور حواله کړو. تر دې د مخه سید ورونو
(سید حسین علی و سید عبد الله باچا ګران
صفدرجنګ او بیا نظام الملک آصف جاه په مرهټیانو
د قطبیع هونډ کتلی وو. اوس ځ غازی الدین
و پنجاب ته ور پام کړ. آدینه بیګ چه د

احمد شاه بابا د مشر زوی تیمور شاه د خوا د دوآبه بست جالندهر حاکم وو د غازی الدین په اشاره سره د مرهتیانو خواته ور او غښتی د ځانه سره ئی سیکان ملګری کړل، او د تیمور شاه او جان خان ته ئی یو غم جوړ کړ د مرهتیانو ځینی چه تر پنجابه راورسیدل. نو تیمور شاه او جان خان د پنجاب د خځه را ووتل او قندهار ته ولاړل ، د رگهوناتهه د دوواویا لکو ٧٣ د وپیو د کال په بدل کښی د پنجاب صوبه وادینه بیګ ته بیرته ور کړه - د رگهوناتهه له د دکن څخه حال راغی. او دی بیرته ولاړی. آدینه بیګ په ١٧٥٩ کال کی مړ سو.

غازی الدین ویوه خواته احمد خان بنګش چه پخپله هم پښتون وو و نجیب الدوله ته پورته کی او بله خواته ئی د شجاع الدوله څخه هم سبد وانلو. غازی الدین غوښتل چه پښتون تور یالی نجیب الدوله د مرهتیانو او احمد خان بنګش دلاسه تباه و برباد کی اود ده په شرارت د تامر هتی دیوه لک لښکر په مرسته د نجیب الدوله پر وطن باندی یرغل وکی نجیب الدوله یوازی لس زره

فوج ددرلود. دوی په سکهر تال کی یوه او مه کلاجوړه
کړه او د دښمنه څخه ئې مقابله شروع کړه. ودې
سره ودې سره ئې احمد شاه ابدالی ته یوسړی
ور واستوئ. ښوک خال ډیرې ودې کړی او دا
ئې ورته وویل چه یولک روپی به د یوه
"مقام" دپاره او یو نیم لکهه روپی به د یوه کوچ
منزله دپاره هم درکوم. نواب ددې ندې خان چه
د نجیب الدوله خسر او د مرزا مظهر جانجانا ن
مرید وو وهغه ته مرزا صاحب د خطرې
ورښودنه کړې وه او ویلی ئې وو چه
د مرهټیانو د بلا د ورکولو دپاره د خان د
ورکولو وخت دئے. نجیب الدوله پخپله واحمد شاه
درانی ته د هند دراتلو بلنه ورکړې وه.
د ټا مرهټه چه د احمد شاه ابدالی دراتګ
خبره وارېدله نو پر خپل ځای ئې کوښند، ـــ
لائے پنډ ته د نجیب الدوله د محاصرې دپاره
پریښوو او پخپله د جنګوجې مرهټه او دغدّار
غازی الدین په اشاره پنجاب ته د احمد شاه درانی
د مخنیوی دپاره دهی سو د ډلی څخه یو
څه لیرې د شاه ابدالی او د دټاجې فوجونه

سره ونښتو. د ښا مرهټي او د ده دوئ د یمې
فوج مړ کړ سو. جنګوجي مرهټي چه په دې
جنګ کې ګیر وو په تېښته دکن له ولاړې او د
دې جنګ حال ئې ور ساوئ. احمد شاه د دښا
کار ورو وکې نوا نو پ ښهر له ولاړئ او هلته
مستوګن (مقیم) سو ده د خپل وزیر ورا ره ـ
عطائي خان د نجیب الدوله د خلاصولو د پاره
سکهر تال له ور واستاوئ. اوس نو د نجیب الدولة
دلته څلور میاشتې سوې وې. په دې څلورو
میاشتو کې راګرځېدلی (محاصر) فوج د ډېرو یوه
تنکه یا د غنمو یوه دانه هم د کلاو بند فوج ته نه
ور پرې ایښې. دګیر سوي (محصور) فوج ډېر
سپایان د لوږې څخه مړه سوي وو. سردار
عطائي خان په یوه شپه کې شپیته مزلو منه
پرې کړه. او د سکر تال ته ور ورسېدئ. د
اول وار څخه سامان چه څخه پر څو نه ره ـ
غنو يو بار د ور یځو ګونې او د غوړیو
تیمان وو څخه وخت تر خپل لاس کې چه د دې
قافلې خوندي کونکي خلک ئې مړه کړه. د اسامان
غازي الدين د ډیلې څخه د پنډ تکو بندئ

د پاڼدلا لېږلی وو. بیا عطائی خان پر کو بند راته باندې ناځاپه یرغل وکړ. د دغه ډیر کسان یې ووژل او پنډ یې په منډه وتښتیدې. عطائی خان د ټوله مال غنیمت د نجیب الدوله ته ور وړاندې کړ. شاه فوج ور چې پخلې کړې ولاړ خوړه. نجیب الدوله د نجیب آباد، چاندپور او نګینې د چاونیو څخه په تلوار سپایان را وغوښتل د شاو خوا جنګیالیان یې هم ملګري سوه او نجیب الدوله د عطائی خان په ملګرتیا توپ شهرله راورسیدې. چیرې چې احمد شاه بابا خپلې خیمې دروې وه پرو تې وو.

غازي الدین غوښت چې د شجاع الدوله په مرسته نجیب الدوله د لارې څخه ایسته کړي مګر د احمد شاه بابا د ډر را تګ د بیرې یې همت نه وکړ. بیانې د ډیره خبسمه خپل بندی ماما انتظام الدوله په ډ نور کسی مر کړ چه تاولې د احمد شاه درانی سره خط وکتابت کړې وو. او دې اوس پنجاب له راغلی دې. بیا یې مغول پاچا عالمګیر ثانی پسې مر کړ. او د جمنا د دود پرډیک یې خوار و غورزاوی. بیا د ډ یالی څخه

وو ته . سورج مل جاټ له ولاړ ته. او بيا چه
مرهټه بهاؤ ډيلي ته راغئ نو د ته هم ورسره
راغئ . احمد شاه بابا چه په دے حال خبر شو.
نو ئے د حافظ رحمت خان وکيل سردار يعقوب علي
خان د ډيلي فوجدار و ته اوکے او ور واته ستاوله.
بيا چه مرهټه سردارانو او نور وکه سيداشيو را بهاؤ
بشواس راؤ - بلونت سنګهه، شمشير بهادر - راجه
سورجمل جاټ - نواب عمادی الدين خان مهاراجه
کانيکوار ملهار راؤ هلکر - مهاراجي سيند هيا - ابراهيم
خان کاردی - فتح خان کاردی جهنکوجی او دا
د مغول سلطنت د برباد ولو د پاره په ډيلي ــــ
باندے يرغل وکړ نو يعقوب خان ځان ئے تر سره
ساؤ ور ساوی . نو د احمد شاه بابا په وئيلو سره
ده د ډيلي کلا خالی کړه - بهاؤ ډيلي و نيوه او لتون
پېړے ئے جوړه کړے . ماجبق نه او زيارتونه ئے رنګ
کړو . بهاؤ غوښته چه د پيشوا زوی بشواس
د ډيلي په تخت کښينوی او شجاع الدوله
ور ونزير اعظم کړی. خو بيا هم د څو ورځو د
دپاره د احتبره په دے ايله کړه چه اول به
د احمد شاه کار کوو - بهاؤ د ډبري جوړ لوئے

بت هم د ځانه سره راوړي وو چه که مې
په کومه ورځ ډیلي ونیوي دابت به د ډیلي
پر جامع لوړ لګوم.

د ډیلي څخه بهاؤ سر هند له ولاړی.
او هلته یې د احمد شاه کسان لکه عبدالصمدخان
محمدزی میان قطب شاه او نور د دالې
سرداران په کنج پوره کښی مړه کړو. دوی
هلته د برسد دلاس ته راو ستلو د پاره —
تللي وو مرهټه فوج زیات وکم پنځه
لکه او د احمد شاه بابا فوج څلوېښت زره
وو شاه درانی چه په دې پیښه خبر سو.
نو سمدلاسه د رو هیلکنډ د سردارانو — په
ملګرتیا د هغی سو. د باغیت کاټ له چه ما
د رسیدي د د یاب په زور را د وان وو.
د قرآن شریف یو څو آیتونه پر غشی باندی
و و یلی او دم یې په رو د کښی تیر سی کړ
او ټول لښکر په او بو د د کډ سو ټول لښکر
په خیریت ستراو بو پر یو لټ او د آسانو — تر
څینانو پوری هم او به نه ورا ورسیدې.
د ملهاراؤ په مشری کړ پنځه ویشت زره

مرهټیانو د پاچا د مخ نیوی وس وکئ، ـــ
د ذرانی باچا خپله یوسنګلی ته او عنت صورتمین
جنګیږه شاه، پسند خان د دوی د پاره ورد
واستوئ د مرهټیان حمله تیښته وپرک کړه.
د هر سپاهی په لاس کی د مرهټیانو
د وه دوه او دری دری سره وو، د لښکر
وپړه - باچا ډیر خوشحاله سو او د هر
سپاهی سره ئې خبری وکړي. بهاؤ چه
په دی حال خبر سو، نو د سامراو واد خطائ
له کبله د سرهند په لوری په تلو تلو کی
بیرته پانی پت له راغئ یو ډیر ژوب
او پسرلور خندق ئې د خپل فوج ګیر چا پیره
وکیندئ او د خندق د خاورو څخه ئې
شاوخوا یوه کلاجوړه کړه.

احمد شاه بابا د سنبهالکه و خواته د تګ
په وخت کښی ډنګر او ناجوړه بود ه کان
په کښتی کارنړ شا پریښوول مرهټیانو خیال وکئ.
چه نموږ د بیری داسی کوی. نو دلوټ
په نیت د شاد خوا پسی روان سو، یوه
یوه پیښتانه. سردار خان جهان خان د

شاو خوا پر مرهټیانو باندې چپاو ور وواهی
او شل زره ئې حیق مړه کړل، بهاو چه
د پانی پت تاریخی ښکاری ته راوړ سیدی ۔
نو دا دریمه ورځ احمد شاه بابا او نجیب الدوله
او دا هم سره د خپلو فوجونو راوړ سیدو۔
شجاع الدوله هم د شرمله کبله د خپل لس زره
فوج سره راغئے په کمک شو۔ احمد خان بنګش
چه خیال وکړے چه غازی الدین ــــــ
برباد ید و نکے دے ولی چه د مرهټیانو
ملګرے دے نو دے هم راغئے د احمد شاه
بابا په فوج ګډ شو. د ده او د نجیب الدوله
نه سره لګیده ۔ بیا هم چه دے داغئے نو
نجیب الدوله مخ له ورغئے او د وغبرګ ئې
ور سره وکړے. د احمد شاه ابدالی سره چه په
دے جنګ کی کوم نامداره خلک ور سره وو.
هغه نجیب الدوله، دوندے خان، احمد خان
بنګش، شجاع الدوله حافظ رحمت خان بړیځی
نواب نجیب خان، شاولی خان وزیر اعظم، شاه
پسند خان، میر نصیر خان بلوچ، برخوردار خان
وزیر الله خان قزلباش او مراد خان ایرانی وو

دا رنګه هغه د چا خبره ده چه یو څو
پښتانه د دکن د طاقت تر مخ سینه لوڅه نیولې
ولاړ ؤ . د احمد شاه ابدالي څخه یوا نی
شل توپونه د کار ور سره ؤ — و بله خواته — د
مرهټیانو څخه درې سوه توپونه ؤ چه
سل کالي ماتونکي توپونه ؤ نه یا لس
زره فوج د توپکو والا و ور سره ؤ - چه
قواعد دانه فوج ؤ او په ټول هندوستان
کښې تر ګردو فوجونو یاتې بلل کیدې .

غازي الدین د ډیلي څخه یوه لویه
خزانه د مرهټیانو د پاره راولیږله هغه
په خطا د نجیب الدوله لښکر له راله . یوه مرهټي
په خپله شپه پوښتنه وکړه . پښتانه په
پوه سو چه مرهټیان دې د ستې پر را
وغورځیدو او د خزانې چوکیداران ټې
مره کړو او داټې د غنیمه څخه د ځان کومک
وبالې . په لومړیو ورځو کښې لږ لږ
جګړې سره کیدې . احمد شاه بابا به هره
ورځ او شپه پر آس سپور پر لښکر ګرځیدی
او وخلکو ته به ټې شاباښي ورکاوې پر ۲۸ جمادی

الاول، احمدشاه بابا د مرهټیانو پر کلا نجیره
باندې د حملې اراده اوکړه. نو ځکه نجیب الدوله
ترمخ د دراوړ جهان خان او شاه پسند خان
ته د ده کومکیانو د تیاکلو، وروسته ته حافظ
رحمت خان، نواب دوندې خان او فیض الله خان
فوج ورګاوی، شجاع الدوله او احمد خان
بنګښ ته د دوی کومکیانو د ټکول او د دوی
ترمخ پخپله احمدشاه او اشرف الوزراء شاه
ولي خان ورلاړ وو.

د نجیب الدوله لس زره سپاهیان ور
پرمخ سوار د مرهټیانو میان ته ورولویږو
سخته مقابله وشوه - د بهاؤ سالار بلونت
سنګه، یوه روهیله مړ کړ، مابنام چه روهیله
ګان بیرته رالو نو صرف څلور زره پاته
سوي وو شجاع الدولة چه داو لیدل. نو
اریان پاته سو او روهیله ګانو ته یې آفرین
او وائیه د مرهټي فوجونو لوی کمانډر سدا
شیوراؤ بهاؤ د پښتو سردارانو د اهل وعیال
او دکورونو د مال د تباه کولو د پاره کو بند
پنډت د پنځوس زره سپرو سره د دهلي و

خواته ولیږئ. احمد شاه بابا حاجي کريمداد خان
عطائي چه اوس اوس د قندهار څخه
راغلی وو د گو بند د سرکوټلو د پاره
واستوه. دا پښتانه پسي ووتو، او اتلس
زره مرهټيان ئې سره د گو بند پنډت او وژل
او دده يمه ورځ بريالياڼ راوروسيدو د
مرهټي فوج خوراک رسد ورځ په ورځ
کميدئ يوه ورځ شل زره مرهټيان مشکل
له دلره کيو راووتلو د پاره تللي وو د پښتنو
پنځه زره فوج چه پرکښت وو شل زره
مرهټيان ئې له دغو څخه داسي توی
کړه لکه ژر دکې، ومولئ چه سرې پرې
کوئ. بهاؤ په دې خبره ډير سره واړ
خطا سو، بهاؤ د شجاع الدوله ته حال ور
واستوئ چه زما او د شاه دراني روغه سره
وکړه. هغه چه واحمد شاه بابا ته ورياده
کړه نو هغه ورته وويل چه زه خو جنگ
اختيار لرم روغه ستاسي کار دی. نور
ټول سرداران په روغه راضي وو. خو
نجيب الدوله روغه نه غوښته. دده دليل

داوو چه د امرهټي يو داسي قوم دی. چه په قول او په لوظ ئې هيڅ اعتبار نشته او س لا موږ ټول سنه سرلاړ يوه ځای سوي يو د ذړه د اخلاصه به جنګ وکواو په عزت به مړه سو. که ور وسته به د امرهټيانو موږ يو يو جلا جلا مړ کړي احمد شاه بابا وويل چه ذړه خو د نجيب الدوله په بلنه راغلي يم که څوک جنګ نه غواړي هغه دې د موږه جلا په خوشحاله ذړه ولاړ سي.

مرهټيانو د دوو شپو څخه په شرمتيا وه د بهاو پرخيمه راو ځرځيدل، او وې او ويل دلوږې تر مرګ د دښمن د توري مرګ سه دی. بهاو هم د جنګ ټينګ نيت وکي د شپې درې بجې به وې چه د پښتنو جاسوسانو حال راوړساوي چه مرهټيان دخپله ځايه را ووتو او په پښو رکښي دي لکه چه جنګ ته بلوي دوی د خپلې چاوڼۍ څخه يو نيم کوس پر مخ راغلو او د توپو لمړي شليک ئې وکي. احمد شاه بابا چه دا وخت ئې چلم څکاوی، يو دم تيار سو چلم ئې و نوکرته

په لاس ور کړے. او بے د خه دار خطا لحے سپر
خپلے تیز رفتار آس باندے سپور سو. او د
سپا یانو په مخ کے ور ننیوسو او د یوه سره ځے
تر بله سره د خپلو سردارانو فوج د بازو کانو
ترمیانه وکاسته او بیا راغئ د سپا یانو
تر شا د لښکر ګاه په مخ کے په خپله سره
خیمه کے کښیناستے، او د هغه ځایه څخه
ئے د جنګ حکم ور کړے. دا د ۷/ جنوری
سنه ۱۷۶۱ء قیامت راپا څونکے ورځ وه چه د دواړ و
خواوو څخه د توپو ډزونه او د ړلے څخه
محکمه سره ورنبور یده.
ابراهیم ګارد ئے چه د مرهټیانو د خوا
جنګیری، توپے وتوپک ئے ایله کړه او د
لسوزرو سپرو سره ئے توری په لاس د
دوندے خانه او د حافظ رحمت خانه پر فوج
باندے ډیره د قیامت حمله وکړه. او د دے
حملے څخه د حافظ الملک رحمت خانه فوج
تباه سو بیا ئے د فوج د قلب ته ور پر مخ
کے او د شاولی خانه پر فوج باندے ئے یرغل
وکړے. و بله خوا نه سیندهیاو هلکر د واړو

د مسلمانانو د فوج پر کیڼ اړخ باندې حمله - د
نجیب الدوله فوج وتو چپاو وواهه. نجیب الدوله
د خپلې پیاده فوج سره د جهنیکوجی سیندهیا
پر فوج باندې زور واچوه، د ده خلکو به په
یوه وار دوه دوه زره گولۍ پر مرهټیانو
باندې عورزولې د دې گولیو د ډزو ځخه
به زړونه په کپې وتوا او د تورو د دوله لاسه
به هغې مڼه سنکار یدو - د دې دور په
سپوری کې مرهټیانو د ځه مڼه لیدو، او
پښتانه پر مخ ورتلو، بیا پیاده وو دوارو
خواؤ ته سره دورمې سوه او توپو پر
مرهټیانو د سره او باران اوکی د دې کبله
د جهنیکوجی سیندهیا او د هلکر فوج پر شا
و تمبول سول - او د مرهټیانو قطار پر دمنه
ځای باندې کوزسو. د نجیب الدوله پر کیڼ لاس
د شاه پسند خان افغان جنگیره سپاییانو و
مرهټیانو ته ډیر تاوان ورا اورساوه.

نجیب الدوله د محرې عوندې د هلکر
پر فوج باندې ور ایله سو او نجیب آبادي پښتنو
داسې توره اوکړه چه چا به داسې ننداره نه

وڅیړلے ۔ د عسکر فوجیانو یُ لکه دَ چمبر خیال داسے تهوکر نړوکړے و دَ جنګ میدان له دو پړوړک سو۔ هلکر پاڅے ته وتښتیدو یُ سیندهیالا خه مودو نور وجنګیدو یُ ۔ او بیا کوډ سو۔ اوله میدانه تخته وتختیدو دَ نجیب الدوله سپروتر خو میلو پورے دَ دوارو دَ فوج تعاقب وکړ۔

ابراهیم ګاردی چه د پښتنو پر فوج د مخ سپر خوا یرغل وکړ نو د شاولی خان ورارو ه اوبیونامتو سردار عطاخان شهید سو ۔ بشواس راو دَ ځلو پښتو زره فوج سره بیا پر قبلے میانو حمله اوکړه ، خواشرف الوزراء شاه ولی خان او د دغه ملګرو ډیره ـــ سخته مقابله ور سره وکړه نو داوتو چه دابراهیم خان ګاردی ټول فوج تباه و برباد سو او دی تے و نیوتو او ځینې او په بنبو شاولی خان خیمے ته تے راور ساوے ـ خود پښتنې فوج د قلب (زړه یا میانو) حال ډیر خراب وتو ۔ بیضی ډیر پښتانه شهیدان سوه ۔ بشواس راو ډوډر و لکاوے ۔ تر دے چه احمد شاه بابا ته خبر ورکړ سو چه پښتانه سپایان د میدانه تخته ځغلی ـ باچا سم دلاسه حکم وکړ چه اول دغه وژلي چه د جنګه ځغلی او بیا دښمن وژني ۔ د دے حکم د کبله د خاستو نکو سپا یانو قدم بیرته مضبوط سو او دوی

سر په بيعه د مرهټيانو سره جنګ شروع کړ.

احمد شاه بابا د خپل مضبوط محفوظ فوج سره يوه دسته د شاه ولي خان د کومک د پاره ورولېږله - په دې ميان کې نجيب الدوله هم د هلکرو د سپيند هيانو څخه راخلاص سو او د شا ولي خان کومک له راغې، بشواس راو د نجيب الدوله د خوا ته ورمخ کې - نو پر شا ولي خان باندې زور خو کم سو، باچا و شجاع الدوله ته وويل چه د شاه ولي خان مرسته وکړه خو هغه پته خوله ولاړ وو او هيڅ حرکت ئې نه کاوه - احمد بابا په خپلو سترګو ديو پوځ ته ځغله ولېدو چه بشواس راو د شجاع الدوله د فوج د خوا څخه بې غمه پر پښتنو باندې محکمه سره کړې او دا ګير کړي يئې دي - شاولي خان لېږي ولاړ کې . او راو څر خيدې او د مرهټې فوج پر پښې اړخ ته چپاو وواهي - باچا چه د شجاع الدوله غداري په خپلو سترګو وليده نو ئې د خپل حفاظتي فوج وړ و دستو ته حکم ورکي چه تاسي يو دم د شجاع الدوله د فوج تر ميان ته ورننوځئ او د فوج د شا د خوا چه شجاع الدوله ته ورمخ سمه ده حمله وکړئ دا دسته پر مرهټې

فوج باندې پرېوتے خوداو د باچا شجاع الدوله دستې ور ننګولاړ وو. په دے حال کې احمد شاه بابا ولوې خدای ته نه سر په سجده سو او د مسلمانانو دبرې دعا ئے وکړه. هغه درو دستو يو فوج هم دځانه سره بيولے وو. هغوچه يوه ګولۍ بسته کړه هغه دا پر خپله تخنبه او بهاؤ پرد سته رااېله سوه. هغه داخيال وکې چه شجاع الدوله غداري در سره وکړه. ولے چه دادے د سته د هغه . د فوج د خوا څخه راغلي دي. نو بهاؤ و شجاع الدوله ته مخامخ ښکنځا وے وکې. د شجاع الدوله يو ملګري ګوسائين هم د هغه پر څنګ ولاړ وو. هغه چه دا واورېدو نو ځمے تبرزين د بهاؤ سره راسم کې. او پر دا سر ځمے و واهه هغه دلته مړ سو. مولوي سيد الطاف علي بريلوي وايي چه په "تفتيش سليماني" تاريخ افغانستان کې ليکلي دي چه د بهاؤ مړيے د عنايت خان دلاسه وو. مرهټيانو چه خپله سردار مړ وليدنو ئے ګمان سو چه بهاؤ وفيل د واړه ووژل سو.

و بله خواته درے سوه فيلانو خپله فوج

تر لپسبولاندې کې او پرشانئ دا منږه کړه ود غه وخت د نجیب الدوله په مقابله کې بشواس راؤ هم مړ کړل شو. د ما څيگر وخت وَو چه مرهټيانو په منږه و تیښته پیل وکړه مسلمانانوله ما ښامه څخه تر ماخستنه پورې لسې لسې او شل شل کوسه په مرهټيانو پسې منږه وکړه او میدانونه و صحراء تولې د مرهټيانو څخه ډکه شوه قریبًا ټول نامداره مرهټه سرداران ووژل شول. په ذرانو مرهټيانو چه خپلې کلالې ته منږه کړه و نوله شپه د بړې تړی پرانه وَو او په داسهار پیښتنو و نیولې. مرهټيان خو نا ترسه خلک وَو د کڼ څخه تر دهلی پورې د وی په هرمنبار وکلی کی لټو پیر جوړکړې وَو نو په د وی د جان ږه نه سوائحې خو نجیب الدوله د ذهو سرپیو او منځو سره ښه وڼه وکړه. د شجاع الدوله چه د لکنهو نواب وُو وصیله ته په سنگاره سپر مرهټيانو وه د کاشی راي قوله چه شپږ او ه ذره مرهټيان د شجاع الدوله کیمپ له ورغلو ده د درانیانو د توری څخه د خوندی کولو د پاره پرده مرهټيانو د خپلوکسانو سپیره

وگکول او بیا ئے کالی د خرڅ و دکړاو رخصت ته کړو

سید الطاف علی بریلوی وائی چه علی ابراهیم په خپل کتاب جنګ مرهټه و ابدالی کی لیکلی دی چه د ابدالی فوج په لاس د مرهټیانو پوره توپخانه و رغله چه پنځه سوه هاتیان پنځه زره آسان د وه لکه غوائی ډیر زر وغیره او ډیره وسله و داوو . د هر پښتانه سپاهی و منره دولس ډیره وه چه دی ته سوره سنبالولای . ګرانت ډف وائی چه دری لکه مرهټیان په جنګ کی وو په دغو کی یو یوځلی مرجی ځان خلاص کړ ، نور مړه سوه . د احمدشاه بابا د فوج هم شل زره سپاهیان شهیدان سو . مګر دبری په خوشحالی کی چا د دی نقصان چندان پروا نه وکړه .

دوست و دښمن دواړه په دی قائل دی چه مرهټیان ډیر کلک و جنګیدل او په تیره بیا د دوی سرلښکر سداسو او بها و ډیر په زړورتیا وجنګیدی د دوی په نامتو مشرانو کی چه کوم خلک د جنګ د هیو څخه وروسته جوړ سو . دغه دری

کسان وو - ملهادراؤ هلکر و بیتهل شندهیوا و دتاجی
گائیکوار انتاجی منکیسر او شمشیر بهادر سره
د زخمي کیدو د پاڼي پت دجنګ د میدان څخه
په تښتید وکې بریالیان سول خو انتاجی منکیسر
او شمشیر بهادر سره د زخمي کیدو د پاڼي پت دجنګ
د میدان څخه په تښتید کې بریالیان سول - خو
انتاجی منکیسر د فتح ننګر د زمیندار کسانو مړکړ

او شمشیر بهادر سره د خپلو درو څلورو
سوو ملګرو د سورج مل جاټ کلا ډیګ ته ورسیدئ

د علی ابراهیم د روایت د بهاؤ ماینه
پار بتی هم ور سره وه د ے په دیګ کې
دوے درے ورځے د خپل میړه د سو څلوا او
د غم کار ترلے ستیرکړے او بیا د سورجمل دیوے
ښځے غنځی بدرګے سره دا سبځه و دکن ته

ولیږل سوه - شمشیر بهادر چه ډیر سخت ټپی
سو علاج ئے کاوئ جوړ نه سو او دلته مړ سو.
د و وشواش راؤ ماینه ګکشی بائی د بتهندراجه
ګوالیار له واستوله او د هغه ځایه څخه دکن
له ولاړه -

حافظ الملک نواب حافظ رحمت خان د پاڼي

پټه په دی د بیم جنګ کی برخه نه واخسته ولی چه دی د سرسام مریض وو د ده پر ځای نواب عنایت خان په ډیره دلاوری د جنګیدی و فتح خان کار دی ته ډیر حالونه د استول سوی وو. چه مرهتیان پریېږده او د احمد شاه بابا ملګر تیا وکه خو ده نه منل. عبد الکریم په تاریخ احمدی کی لیکی چه احمد شاه ابدالی د عنایت خان د ذپ د تیاو مړانی ډیره ستاینه وکړه او ورته وی وئیل چه عنایت خان د نه شخه د خدای په فضل سره د دکن شخه تر بنګاله پوری ستا باچهی ده. دا محکمی د دښمنانو شخه پاک کړه. اوس به ته پر هند باچهی کوی. او ماله به د خیر دوعا کوی او بیا ئی و وییل چه شجاع الدوله به زه د ځانه سره بوزم ولی چه دا ستا د قام شخه نه دی او زه به و ده ته بل ډیر آباد ملک ورکړم. خو ده ورته ووئیل چه بادار که شجاع الدوله د ځانه سره مه بیایه کنی بیا به خلک وائی پښتنو دایو سړی وایسته چه د هندوستان ځایه سړی وو.

احمد شاه بابا وئیل چه دا منم ستا و د ده په

په میانه کې هیڅ د ښمنی نشته - لاکن د دې پاڅې به ښه نه وې - خیر خو زه ستا خواست قبلوم.

بیا د احمد شاه بابا په حکم سره ابراهیم خان ګاردی چه د مرهته فوج د توپخانې لوئ افسرو و د پښتنو د حوت په بدله مړ کړ سو - غازی الدین خان عماد الملک چه د هغه د لاسه د جنګ د اوډ بل سوې وو کوم وخت چه ده د جنګ حال ولیدی نو بهرتپور له سورج مل جاټ له ولاړئ بیا د هغه ځایه څخه دکن له ولاړی او شل کاله هلته لګیا په لټ. او در پدره ګرزیدلګ - مولوی سید الطاف علی بریلوی د عماد الملک په لړکي لیکي چه په ده هغه وخت خلک خبر سو چه انګریزی فوج د ټ په سن۱۸۰۹ کلند کې ګرفتاره کړ ګورنر جنرل دی. مکے معظمے ته ولیږئ. په اخیر عمر کې بیرته هندوستان له راغی او د احمد شاه ابدالی د نوئ تیمور شاه سره ئې شناخت واچاوئ د ملتان د صوبیدار سره ئې هم تړون او موندئ او بیا د لته مړسو -

احمد شاه بابا د شجاع الدوله ته په ټينګه وويل
چه شاه عالم چه د خپل پلار عالمګير ثاني تر شهيد
يدو د هغه بنګال له تللی وو د هغه فرمان
بردار ځی به کوي او دی د شاه عالم وارث ګڼي او تر
هغه چه شاه عالم دهلی له راتلی مرزا جهان
بخت ئې نائب السلطنت وټاکوي او نجيب الدوله
ئې د هغه امير الامراء کړ او ورته ئې ووئيل چه د
نوموړي شاهزاده سره په دهلی کښې اوسه
د نواب احمد خان بنګش ته ئې د بخشي ګري
منصب په لاس ورکی او حافظ الملک رحمت خان
ته د خپله جانبه د هند د باچا په دربار کی
مختار کل يا وکيل مطلق وټاکی شجاع الدوله
د باچا ابدالي په اجازه د بسواس راؤ مرهټې د
ګنيش شنکر پنډت او د نورو هندوانو سره
ذريعه د چندی په لر ګيو وسوځی بيا ئې د بهاؤ
چه د مرهټه فوج کماندر انچيف وو، مرهټي ته
هم د غه رنګه وسوځی د مسلمانانو مړي پس
د جنازې د لمانځه په يوه يوه قبر کي ښخ
ښخ کړه سوي دافسرانو قبرونه جلا جلا وو
مرهټيانو ئې څه په کندو والو کی ښخ کړل او دانور

نژهغتو پوری دغنیمی پرانته وتو او دکاکا نواو مردار خوړو خوړاک سو. دابراهیم خان ګاردی ورور، فتح خان ګاردی چه تپی وتو - د شجاع الدوله په خیمه کی پروت وتو - کوم وخت چه شجاع ډیلی ته ولاړی نو فتح خان هم هلته مړ سو او دبنار دباندی ښخ سو - شاه ابدالی چه ډیلی له ورغی نو نواب زینت محل او شاهزاده ولی عهد بهادرخان تی تود استقبال وکړ - دوی یو لک روپی و باچا ته او پنځوس زره روپی واشرفی الونداره میلمستیا و رکړه د مرهټیانو باچا بالاجی، باجی راؤ چه د ماتی حال واوریدی نو په تخت د تاج پریښوول او په پاړ بتی مندرکی تی ګیان د هیان پیل وکی او شپږ میاشتی وروسته له دغه غمه په دغه حال کی مړ سو ـــــ د مرهټیانو دغتو غتو کورونه بنځی چه د خپلو ناریینوتو سره تللی وی د تل د پاره غائبی او ورکی سوی په مهار اشترکی داسی کورنه وو چه هلته به د مړو غم نه وو.

نواب نجیب الدوله د خپله طرفه و احمدشاه

ابدالی ته خلویښت لکه روپۍ ورکړې. مرزا جوان بخت هوښیار او ښه سړی او نجیب الدوله بیا ایماندار او ښه سړی وو ده د شجاع الدوله او د روهیلو ښه سلوک کاوه ــ او د ملهار اؤ هولکر ذره هم ساتي ولې چه احمد شاه ابدالی د ټول مغلیه سلطنت انتظام د نجیب الدوله په لاس ورکړی وو ــ نو ده مرهټیان د دوآبې څخه او ایستل یوازې د سورج مل جاټ کلاته په آګره کې ولاړه ــ پر ښیبنوولو د نجیب الدوله په اته کاله حکومت کې مرهټیان بیا نه سو ښکاره کله کله به ئې تښتانه عمله دوی سره کیده ــ

د "سیر المتاخرین" لیکوونکی لیکي چه اوس نو دا وخت دی چه نجیب الدوله د شاه جهان آباد واکدار دی لس یوولس کاله ده د امیر الامرائی کار په ډیر دیانت او شجاعت تر سره کی. خلک به ټول خنی خوشحاله وو دا انصاف او د عدل دور دوره وه په دا وخت کې چه باچا نه وو د ده ټول د ملک کار و بار د یو بلچا غونډی پر لاره اړاوه په دې زمانه کې ماسوا د امن

وامان هیڅ بد بنظمی نه وه یا بدامنی بڼه
وه.

سورج مل جاټ دوه واره د احمد شاه
ابدالی دتوری خخه خلاص سوی ؤ او نو په
دے ئے طاقت نه وو چه کار سوی د ده د تیموری
کورنی او د نجیب الدوله ډیرو ملګرو نیت وکړ او
د جاټانو پیو لوی فوج لار هی کی تر بهادر
ګړه پوری د او د سیدی یوه سردار بهادر
خان چه د بهادر ګړه واکدار وه وو نجیب الدوله
ته په دے حال خبر کی نجیب الدوله
یعقوب علی خان او راجه دلیر سنګه سورجمل
له ور ولیږل چه روغه په وکی خو سورجمل
ور وغی ته غاړه نه اینښوول نو نواب
نجیب الدوله خپل ورور اعتقاد الدوله نواب
سلطان خان خپل زوی ضابطه خان او خپل
وراره افضل خان د یو فوج سره د سورجمل
د عوض پیچ د پاره واستول دا لښکر تر راج کهاټ
ورکښته سوه او په جبو د تیل کی ئے خیمے ولګولے
سورجمل هم د جنګ د پاره ور له راغلی. دوهم
ورځ جنګ و نښتی د جاټانو ډیر و هیله نو سره

جنگ سو دافضل خان پر خوا د لښکر زیات زور راغی. سورجمل پر یو پوړ باندې ولاړ د جنګ ننداره يې کوله په دې حال کې دافضل خان سترګې پر سورج مل ولګیدې محمد خان بلوچ چې د نجیب الدوله یو سردار وو د خپلو سپرو سره ئې پر سورجمل یرغل جوړ کړ. او د هغه لاس ئې ځنې پرې کړ. د هغه دنګه د سورجمل ملګری مرزا سیف الدوله او امرسنګه هم د محمد خان بلوچ ملګ و مړکړ. داوخت نجیب الدوله پخپله هم د خپل فوج سره راسیدلی وو محمد خان بلوچ د سورج مل پر یکړي لاس د نجیب الدوله خدمت له ور وړی. دالاس ئې پر نیزه پورته کړ د سورجمل ملګري وار خطا سو. وتښتیدو نواب پر دې خبري د خدائ پاکؒ د شکر سجده وکوله. او د فتحې نغارې ئې و دنګولې.

د سورجمل پر ځای د هغه زوی جواهر مل راجه سو شپږ میاشتې وروسته جواهر مل د یرلوی لښکر سره د خپل پلار د بدل اخیستلو دپاره د ډیلي په لور دا روان سو. ملهاراو هلکر چه یو

تکړه مرهټې سردار وو سره د خپل پنځه دیرش زره
فوجه د جواهر مل په وینا د ده د کومک د پاره راغلې
دے کړ فوځونو د دیلي محاصره وکړه د نجیب الدوله
څه داوخت فوج لږ وو، کلا ئې مضبوطه کړه او د بناره
څخه د باندې ئې خان ساتنې د ناعې د جنګ
کولو د پاره فیصله وکړه او و بل خوا ته ئې وحافظ
رحمت خان بریځې ته او احمد شاه درانی ته
د کومک د پاره خطونه واستول. حافظ الملک رحمت
خان په سنه ۱۷۶۵ء کې عنایت خان خپل نائب
وګماری او د خپل فوج سره او د نواب دوندے
خان بخشي سردار خان او فتح خان په ملګرتیا
د بسولی پر لار دیلی له د وانسوم هتیانو د
نجیب الدوله په ریاست کې شر و فساد جوړ کړې
وو او د دیلي د بنار د شاوخوا کلي ئې سوځلي.
وو چه د دغه د کبله دیلي له درسد تګ بند
وو حافظ الملک د خپل فوځ یو حصه د ستے د دغه
مرهتیانو د تړټلو د پاره وړ ولیږلے. دغو
مرهتیانو حمله پسې واخستله جواهر مل.
و ملهار راؤ چه د ... و دصیله کانو د راتګ او
د قندهار څخه د شاه ابدالی د راتګ آوازه

وا و ر ید ه - ملهار راؤ جو هر مل مجبوره کړ چه د
نجیب الدوله سره روغه وکي - جو هر مل بهرت
پور ته بیرته ولاړ تر نجیب الدوله د روغې
قرارداد را وړ سیدی حافظ رحمت خان تر پلی
پوري ته وړو د سیدلی چه دا حال معلوم سو بیرته
وطن ته ستون سو. دا رنګه دا قصه پای
ته ورسیده -

په سنه ۱۷۶۸ع کی وبجواهر مل په
مړکی د هغه زوی رتن سنګه راجه سو - په
سنه ۱۷۶۹ع کی هغه مړسو د هغه نا بالغه
زوی کیری سنګه د بهرت پور پر ګدي -
کښیناستی د ده دوار کامیریځ اکاکان لال سنګه
او رنجیت سنګه د ریاست مدار المهام وړو د هغو
دوړو تار منځ واو ښتی - رنجیت د سیکانو څخه
کومک و غوښتی - لال سنګه هغه په پیسو خپلی
خواته را واړول - رنجیت بیا را ولاړ سو مرهټیانو
ته د خپل کومک دپاره راو بلل یو داو وچه ددوی
مشر یا چا پیښوا مادهوراو دا تیاره فوجه سره
راو رسیدی او پر لال سنګه باندی تی حمله
وکړه د دیګ سره نږدي جنګ وسو چه په

ھغه لال سنګھ مات وخوړه ـ پنځه زره سپاره او دوه زره پیاده وو ژل سول پاتې نه لال سنګھ ومرهټیانو ته پنځه شپیته لکه روپۍ ورکړې او ځان ئې ځنې خلاص کی ـ

د جاټانو د تباهۍ وروسته مرهټیانو د نواب نجیب الدوله او نواب احمد خان او فرخ آباد او د حافظ الملک وخوا ته را مخ کړ. نجیب الدوله دا وخت په دهلي کې وو او د ده فوج نه وو ډیر سره چه د مرهټیانو مقابله ئې په کړې وای ـ بل دا وخت طبیبانو ده ته دا اصلاح ورکړې وه چه ته به د هوا د بدلید و د پاره وطن له ځې خود مرهټیانو له خوا خطره وه ـ نو نواب مجبوره سو ـ د حافظ رحمت خان د املوړ ځای ئې بې د دوه هیله سردارانو ـ د مشورې و صلاح د یو مرهټه سردار د سبا جې کشن او د خپل یو زاړه شناخته تکوجي په واسطه د ـ مرهټې پیشوا سره صلح وکړه مرهټیانو غوښت چه سر احمد خان بنګښ د فرخ آباد هم یرغل وکی ـ نجیب الدوله پر دې ور سره نه وکړه.

بیا نجیب الدوله په دیلي کې خپل مشر زوی ضابطه خان د مغول شهزاده ځوان

نجت امیرالامراء و تاکتے اودے تہ د فرخ آباد
پرملہم باندے واستاوے نہ ماخیال دادے
(حمیداللہ) چہ نجیب الدولہ د ولے گیر راغلے
وو چہ د خپل ځان د خلاصولو دپارہ ئے د مرھټیانو
سرہ اوبزہ پہ اوبزہ دیو بل پښتانہ سرہ چہ
ھغہ احمد خان بنګش وو جنګ کول منظور کړو
کہ څہ ھم احمد خان د دہ مسلمانے ورور وو
او بیا پښتون ھم وو - او بیا د کافر مرھټیانو پہ
پرہ د مسلمانے ورور سرہ جنګیدل ډیرہ ناوړہ
خبرہ وہ او پہ تیرہ بیا د نجیب الدولہ غوندے
دیندارہ او تکړہ پښتانہ سرہ دا خبرہ ډیر بد خوند
کوی .

خیر خو دے کارہ څخہ چہ خلاص سو نو
نجیب الدولہ پخپلہ وطن لہ راغے سو خو ډیر
پہ تکلیف تر ھاپرہ پورے د رسیدے دا وخت
د دہ ناجوړے زیاتہ سوے وہ چہ پہ خپل
ھوښ کښے نہ وو - آخر داوو چہ پر ۲۴ ستمبر
۱۷۷۰ء برابر د ۱۱۸۴ھ نواب نجیب الدولہ پہ
حق ورسیدے د دہ ملګرو او د کورخلکو -
غسل ورکے او کفن ئے ورکے او بیائے نجیب آباد

له پرېوت او هلته يې د نواب دوندې خان
د لور چه پخپله د نجيب الدوله کهول وه په مقبره
کې ښخ کړ. په جنازه کې يې د ښار ټول خلک که
هغه مسلمانان وو که هندوان وو روان وو. د ښار
خلکو ډېر ورځې د نجيب الدوله په مرګ وير
وکې. د ده د وفات تاريخ د ناظم ملک نقاش راوړی
سنه ۱۱۸۴ هـ. هلته چه نواب احمد خان بنګش خبر
سو چه نجيب الدوله سره د مرهټيانو د ما د ملک
په ټه وبالا کولو پسې را روان دي نو ټې حافظ الملک
ته حال ور واستاوی. حافظ رحمت خان په پوه
سو. چه دا د نجيب الدوله چم دی يې د اغواړي
چه دا پاته سوي مرهټه سرداران دا رنګه
د روهيله سردارانو په لاس ختم کړي. نو
داؤ چه حافظ الملک خپل فوج رهي کړ او د فرخ
آباد و خواته روان سو. ور ته معلومه سوه
چه نجيب الدوله لا تر اوسه د مرهټيانو ملګري
دي او د جمنا تر رود د دا يپوري وتلي دي
نو حافظ الملک د آنوله، بدايوان او روهيټ
پولار و قادر ګنج ته روان سو. دلته
دلته ور ته معلومه سوه چه نجيب الدوله

د مرهټیانو حشمه جلا سوی دی او چه هار
پور له تلی نو پر لاری مړ سوی دی
مګر دنجیب الدوله زوی ضابطه خان لاور
سره دی. حافظ رحمت خان بریڅی
پنځلس زره پیاده و سپاره د نواب احمد
خان دکومک د پاره ورواستول کوم وخت
چه مرهټیان ټپالی ته راورسیدل نو حافظ
صاحب فرخ آباد ته ولاړی او دګنګا دروپر
ختیځه غاړه بانډی ئې واړول ضابطه
خان چه موقعه پیدا کړه نو د مرهټیانو څخه
جلا سو او خپل وطن ته ورسید ی غرض
دا چه د مرهټیانو سره پرشپا رس محاله باندی
روغه وسوه او نواب احمد خان پر ۲۸ ـ
د بیع الاول باندی مړ سو.

نواب نجیب الدوله په اخلاق او په اوصاف
کی ممتاز وو دی د خپلی زمانی په امیرانو
کی د خپل رشتیا کوی ورحی د دیانتداری
او د قول د پابندی د پاره ډیر مشهور وو.
حقیقی پښتانه امیران به دده د ښه او او چت
ثونڼ د کبله دده حاسدان وو مګر نجیب الدوله

چه به هر وخت موقعه و مونده. د دا خلکو
سره به ئې سنه کول. مولانا اکبر شاه خان
نجیب آبادی لیکی چه نجیب الدوله د نجیب
آباد په خاص بازار کی هیڅ ماجت نه وو کړی
جوړ د دې د پاره چه د هندوانو دوکاندارانو
دیو خاص حرکت له کبله دلمانځیانو ته
تکلیف وو او نه سیږې د غه د تنګه چه
کوم وخت د ده مور مړه شوه. نو د قبر د
د پاره چه ئې کوم ځای تجویز سو. دغه هم
دیو هندو جات محلې وه دغه ئې د دوه کړی
ځځه انکار وکړ. دوهم ځای ئې تجویز سو
دا محلې هم دیوه هندو وه. دا د ته معلومه
سوه چه ټول ښار و خوا محلې د هندوانو ته
دکړې سوې دي آخر نجیب الدوله و ویل
چه د دې چه جنازه ما لره (صوبه سرحد)
له یو سو. پر دې پاندی یوه هندو له دهم
پرده باندی داغځې او په خپله محلې
کې ئې د مقبرې د جوړیدو اجازه ورکړه.
یو انګریز مورخ مِلَ (MILL) د نجیب
الدوله په لړ کی لیکی د نجیب الدوله د

هندوستانیانو او د یورپ والاؤ پر ذریعه باندې دا خبره نقش کړې وه - چه دې دا اعلیٰ درجې یو سړې دې شو ما په خیال سره دا افغانې نجیب الدوله چه د سلطنت وزیر اول وو - او په خپله هم په دوآب کې د ملک دیوې لوئ برخې خښتن وو دې دا وخت دقطبیع هندوستان نه ټولو مشهوره پښتون وو کوم واقعات چه د ما ته معلوم سوې دې د هغو څخه دا معلومیږي چه دغه سړې دې چه د قدر او تعظیم وړ دې " یوبل انګریز مستر داسلتي په ۱۱۶۸ کې د ډائریکټر کنټرول ته یوه چیټې لیکلې وه په هغه کې ئې لیکلې وه چه "په لحاظ د انسانیت او په لحاظ د حکومت د ټول حکومت هندوستان کې شاید نجیب الدوله یو داسې سړې دې چه د هغه په حق له دومیل کیراې سې چه هغه یولوې سړې وو د ده سلوک د خلکو سره د اعلیٰ درجې وو ده د پنځو سو سپرو د افسر څخه تر موجوده عهدې (د امیر الأمرائي وزارت) پورې یوازې د خپل اعلیٰ درجې د شجاعت د ایماندارئ

ذهانت طبع او استقلال د کبله ترقی کړے وه
مغول باچا عالمگیر ثانی و عالی گهر ته د
جهجر او د هانسی علاقے په جاګیر کښی ورکړے
او د تنګ اجازت ئے ورکړ چه خپل ولی عهد
خلاص کړے عالی ګهر د نجیب الدوله په بلنه دګنج
پوره پر لار میرانپور له ورسیدے نجیب
الدوله پنځوس زره روپے د میاشتے و د ته ور
کولے کښید ے. د نجیب الدوله مطلب دا و چه دعماد
الملک شخصه بدله واخلی خو نه سو بریالی بیا
علی ګهر لکهنو له ولاړے - شجاع الدوله پنځوس
زره روپے آسان و هانیان او نور سامان ئے
ورکړے د بنګال خلک د میر جعفر څخه تنګ وو - د
شجاع الدوله په مشوره ولی عهد بهادر یعنی
عالی ګهر د بنګال د فتحی د پاره " د کرم ناسا "
تر رود پوریوالت لمړے ولړ د ولی عهد خوا پر
درنه وه - خو د اله آباد حاکم محمد ولی خان
نږه واچاوت ولی چه د میر جعفر د خوا څخه
انګریزان جنګیدل او د هغو سره جنګ کران
کار وو په سنه ۱۱۷۴ھ کے شهزاده عالی ګهر
په کهتول کے د شاه عالم په نامه سره باچا سو -

تر درے دمخه د دغه په پټنه کې د موسیو لا فرانسیسي په مرسته د انګریزانو سره جنګ وکړ. خو دیو سخته جنګ ورو وروسته شاه عالم خان د انګریزانو ور و سپارلي او هغوی دی پټنې ته بوتلي. په سنه ۱۱۷۳ ه کې شاه عالم د پټنې څخه ووت ولې چه د انګریزانو د نګرانۍ او سرپرستۍ څخه تنګ وو. نو داؤ وچه دی اله آباد ته ولاړی او په سنه ۱۱۷۷ ه کې هغه شجاع الدوله خپل وزیر ولګاوی. بیا او وه کاله وروسته د شجاع الدوله او د انګریزانو د خوښۍ څخه پرته ډیلی ته ولاړی او په فرخ آباد کې مرهټیانو هرکلی ور ته وکړ. په ۲۹ رمضان سنه ۱۱۸۵ ه ۵ رمئ سنه ۱۷۷۱ ع کې شاه عالم باچا ډیلی ته راغی.

خو مرهټیانو د نجیب الدوله د زوی امیر الامراء ضابطه خان څخه ډیر بیریدل او د دی سره د ډیلی لاری اخستی بالی. هغو شاه عالم وپاراوی چه پر ضابطه خان باندی حمله وکی او شاه عالم هم د ضابطه خان د پیلار د نجیب الدوله تولی هغه نیکی هیری کړې چه هغه د مغولو د کورنۍ سره کړې وې او سره د

خپله فوجه د ضابطه خان په خوا ور روان سو
مرهټیانو هم د ده ملګری وه ضابطه خان د
دے لوئ فوج مقابله ونه سوای کولای او په سکهرتال
کلا کی بند سو مرهټیانو د نجیب الدوله دکورنی
ښځی وکوشنیان و نیول او قید ئے کړل ټول
مال و اسباب ئے ځینی لوټ کړ - شاه عالم
په خپلو سترګو د نجیب الدوله دکورنی ناکی ولیدے
چه د مرهټیانو دلاسه سپکی او بے پرده سوے
او ده لا هیڅ غیرت نه ورغی تر دے وروسته
دعوث ګړه ماسیوا د سهانپور ټوله علاقه د
شاه عالم په قبضه کی ور غله - تر دے وروسته
شاه عالم باچا د ربیع الاول سنه ۱۱۸۶ ھ په میاشته
کی د خوشحالی او بری بیرغ ور پاوی په ډیلی
ور ننوات د دے برادر کشی د مهم ور وسته
مرهټیانو و شاه عالم ته د مال غنیمت څخه
هیڅ هم ور نه کړو بیا باچا مرهټیان دکرنول
سنګه جاټ د سرکوتهلو دپاره ور واستول او
مرزا نجف خان ایرانی ئے چه د خپلو مسلمانانو -
ور وتو روهیله کانو (پښتنو) په ب با دولو کی تر مرهټیانو
لا هم دوه قدمه د مخه وو د دے فوج بخشی مقرر

کې بیا باچا خیال وکې چه د مرهتیا نو څخه ځان خلاص
کې د دې په وسیله نجف خان د مغول فوج برتې کول شروع
کړل مرهتیان په دې پوه سو.

دوې د نجیب الدوله د ذوې ضابطه خان سره تار
برابر کړې او دغه ته یې وویل چه بیا د بیر تاوان به درکو
او تا به امیرالامراء جوړ کړو لکه څنګه چه ستا پلار وو نو
داؤ چه تکلوجي جاتان پر لیښوول او دهلي له راغی او شاه
عالم ته تې ووتل چه ضابطه خان امیرالامراء کړه باچا
ځان دورې دورې کاوی - مرهتیا نو د توري په زور د ضابطه
خان خطا هم په باچا در وبخښله جاګیر تې هم په ورکړ او
او امیرالامرائي تې هم په ورکړه ضابطه خان د بیر دلاور
او زړه ور سړی وو ځکه ولې چه شاه عالم باچا پر یوحال
نه وو او د مغول دربار امیران او غټان ټول سازشیان وو
نو په دې ضابطه خان و مغل سلطنت ته د فائید دې په
ځای تې تاوان ور ورساوې د خپل پلار نجیب الدوله
غوندې د ضابطه خان هم داخیال وو چه مرهته اقتدار او
قوت دې لسې زیات خو د دې ته شد بیر نه وچلید
ضابطه خان د علم خښتن او د اهل علم شوقي
او قدر من وو - د حضرت شاولی الله د
زامنو خدمت تې هم هر رنګه کاوی.

او دَ حضرت شاه فخرالدین دهلوی خاص مرید وُو۔ دَ ضابطه خان
یوه فارسی قلمی نسخه دَ ما صاحبزاده حمید الله څخه راځغنه ده۔ چه
ډیره خوشخطه او ښایسته ده۔ دا دَ ضابطه خان په لائبریری
کی او سیدلے ده۔ شپږ او وه ځایه دَ ضابطه خان مهر پر لگیدلی
دی۔ چه عبارت یې داسی دی۔ "رستم الدوله بهادر جنگ ضابطه
خان" په دے کتاب کی درے کتابه دی۔ یو دَ شیخ عبدالحق
دهلوی تکمیل الایمان بل دَ ملا محمد بقا کنجاهی چهار فصل کابل
او بل دَ شیخ نور الحق چه دَ شیخ عبدالحق محدث زوی دی۔ یو کتاب
دی۔ چه اوراد و وظائف پکښې دی۔ دَ کتاب خط نستعلیق
او ډیر خوشخط دی۔ دَ هر کتاب لمړی صفحه نقشی او شاوخوا
دَ هری صفحے ژړی ژړی دی۔ د کتابت کال یې ۱۱۳۹ هجری دی۔

په ۱۱۸۶ هجری کی مرهټیانو په شاه عالم باچا دَ خپل ځان
دپاره د اله آباد او کوړه جهان آباد دَ جاگیر داری سند هم ولیکی۔
بیا مرهټیانو نورلاس پسے واچوی۔ او دَ پخوا غوندے یې بیا یو وار دَ
پښتنو وطن روهیلکنډ لوټ کړ۔ په دے مابین کی دَ مرهټیانو
باچا پیشوا انارائن راؤ مړ سو۔ دَ دوی دَ خپل کور خیال سو۔ نو یې
دَ روهیله کانو سره روغه وکړه۔ او په مغول باچا شاه عالم یې دَ خپل
زړه شرطونه ومنل او ژر دَ دکن پخوا روان سو۔

اوس به لږ حال دَ مرزا نجف خان ایرانی اولیکو چه دَ

ضابطه خان حریف امیرالامراء وُو۔ داسړے ایرانی وُو۔ لمړے وار د الله اباد دَ صوبیدار محمد قلی خان ملازم وُو۔ بیا دَ بنګال دَ حاکم میر قاسم نوکر شو۔ بیا چه کوم وخت شاه عالم په الله آباد کی وُو نو دے سړی دَ منیرالدّوله په واسطه او کومک دَ شاه عالم ملازمت اختیار کړ۔ او دلی له ورسره راغی۔ دهٔ دَ خپلے زړورتیا او دَ خپلو تدبیرو په سبب دَ ذوالفقارالدّوله، نواب نجف خان بهادر غالب جنګ خطاب هم حاصل کړے۔ دهٔ لمړے وار دَ جاټانو زور ورکم کړ۔ بیائے دَ شاه عالم په خوښه او پارُلو دَ ضابطه خان سره جګړه وُو هله او دَ سیکانو او روهیله کانو وکړ لښکر ته ئے په ۱۹ رمضان المبارک ۱۱۹۰ھ ماته ورکړه۔ او نواب ضابطه خان ئے د باچا پر اطاعت باندے مجبوره کړه۔ دَدے په بدله کی باچا شاه عالم نجف خان امیرالامراء کړ۔ او دَ نائب وزارت عهده ئے ورکړه۔ په دے جنګ کی د روهیله پښتنو ته ډیر تاوان ورورسیدے۔

اوس نو نجف خان نور هم زور پسے واخیست۔ دَ ایران څخه دَدهٔ په سبب دخلکو راتګ پیل شو۔ څو څو ورځے وروسته په دلی کی یواځے ایرانیان ګرځیدل۔ نجف خان دَ شیعه ګانو دَ مسلک ترویج شروع کړ۔ او هغه پاته اسلامی شعائر هم پسے ختم کیدل شروع شو۔ نوی نوی مشغلے شروع سوے۔

داوخت بے غیرتی او بے شرمی زیاته سوه - نجف خان دَ خپلو مسلمانانو دپاره او لپښتنو ورونړو دپاره خو متعصب وُو خو غیر مسلمانانو دپاره بهادر او سخت وُو مثلاً په ۱۱۹۵ هجری کښې یې پنځه زره سیکان سره دَ خپله سرداره په جنګ کښې وُوژل - په ۱۷۷۴ عیسوی کښې یې دَ اکبرآباد کلا دَ جاټانو څخه واخسته ، او ورحمد بیګ همدانی ته یې ورکړه - دَ جاټانو سردار رنجیت سنګه دَ لسو زره فوج سره سکندرآباد له راغئے خو ماته یې وخوړه او بیرته پرشا ولاړے - بیا چه یې ارخ نه ولګیدهٔ - نو ئے سمرو فرانسیسی هم دَ ځانه سره راوستے مګر مرزا نجف خان دواړو ته ماته ورکړه - او په ۱۷۷۶ عیسوی کښې یې دویګ کلا فتح کړه - څو لکه روپئ نغدی او دَ اکبرے دَ لوټ مال هم په لاس ورغئے دَ بهرت پور تخت نجف خان درانئ وزویٔ ته ورکئے - وجاټانو ته درے کلاوے ورپاته سوے - نجف خان په جاټانو کښې په ورکړه و سخاوت اسلام خور کئے او عجبه خو داده چه زیاتره جاټان یې سیدان شمار کړو - نجف خان په ۱۱۹۶ هجری کښې مړ سُو -

دَ مرزا نجف خان په ځپلو خلکو کښې محمد شفیع خان او افراسیاب خان په ځپلو کښې دَ امیرالامرائی دپاره کش وګیر شروع کئے - دَ شاه عالم باچا زوئے مرزا جوان بخت چه دا حال ولیدو نو یو څو امیران او مخوران یې وځان ته ورو بلل او ځپله امیرالامراء سو - او دَ حکومت

کار ئې پیل کړ. مګر باچاه دا دوو امیرانو تر هوده لښو وتلای ترې
چه ولی عهد مرزا جوان بخت ته د خپلې سر د بیرې وهم ور ولیدئ.
او پر دوولسم جمادی الاول ۱۱۹۸ هجری کې چه یوه شپه توره تیاره
او طوفان وُو۔ دئ پټ د دهلی نه ووت او د رامپور وروسته
لکهنو ته ورسیدئ۔ تردې وروسته مرهټه سردار مادهوجی
سیندهیا، محمد شفیع خان د خان ملګری کئ۔ او پر پایه تخت
دهلی باندې د اقتدار قائمولو په نیت سره د خپلې فوج د چیف د قطب
وخواته راورسیدئ۔ په دې مابین کې۔ محمد شفیع خپلې مرګ مړ شو۔
او افراسیاب خان په چم وودکه بې مرګ۔ نو داوُ چه شاه عالم باچا
د مرهټانو مشر "پیشوا" وکیل مطلق کړ۔ او مادهو ګوالیارې ته یې
د نائب منصب ورکړ۔ مادهوجی د باچاه د کمزورئ نه فائده
پوره ته کړه۔ او د آګرې نه تر دهلی پورې یې پر تهوله علاقه
باندې قبضه وکړه۔ او د باچاه پاره یې ۶۵ زره روپئ د میاشتې
تنخواه ولګوله۔ یعنې باچا خو شاه عالم وُو۔ خو تنخواه مرهټانو
ورکوله۔ دا د زوال پائ وُو۔ چه مغول باچهی ولید۔
په دې خبره مسلمانو ډیره خوابده کړه۔ په داشپوکې د جې
نګر راجه پرتاب سنګه په جنګ شو۔ مادهو راؤ سیندهیا د جنګ
د پاره ور ووت۔ عین د جنګ په میدان کې د سیند هیا
سردارانو د ده سره دروه وکړه۔ او ده ماته وخوړه۔ او ګوالیار

له ولاړې .

دَشاه عالم په دغه چارو روهيله کانو ډېر خوابدې سو. او صلاح و مشوره يې سره شروع کړه. چه دا نا پوه باچا څنګه د مرهټيانو دَ لاسه را خلاص کي نواب ضابطه خان دَ خپل عزت د پاره دَ سيکانو سره تار برابر کړے . او دا ناره لا هم ولاړه سوه چه دغے سيک سوئ دئ . مګر نجف خان ايرانی دَده کار يو مخ سره ور وشلاوئ . دَ ضابطه خان زوئ او د نجيب الدّوله لمسے غلام قادر خان وُو. کوم وخت چه دَ شاه عالم په ويلو مرهټيانو دَ نواب ضابطه خان لښکر غوث ګړه تباه او لوټ کړے وُو. نو دَ هغه ماينه و زامن او دائے لم دَ خانه سره را وستلے وُو. نو دَ هغه وخته څخه غلام قادر دَ مرهټيانو څخه ورځخه وُو. دئ چه يے و شاه عالم ته ور وړاندی کړ. نو هغه حکم وکے چه دا مړ کے مګر دَ منظور علی خان ناظر په سفارش سره يې پريښوُو. دا وخت دَ غلام قادر روهيله عمر نه يا لس کاله وُو . ډير ښائسته هلک وُو. شاه عالم دئ خپل منظور نظر کے او خصی يې کے . او په قدسيه باغ کی يې دَ ښځو او مينځو په ټولے کی ايله کے .

باچا به لږ هر وخت نشا و سرور خوښاوے و غلام قادر ته به يې دَ ښځو کالی ور وا غوستل او دَ باچا په مخ کی به يې

ناچاوُی۔ تر لهغو پورې چه غلام قادر نادان او ناپوه وُو۔ دا کاروند
يې کړل۔ خو چه کوم وخت لوئ شو۔ او په ښه و بد پوه شو۔
دستې دَ سرې کلا څخه وتښتيدئ او دَ خپل پلار نواب ضابطه
خان سره يو ځائ شو۔ کوم وخت چه نواب ضابطه خان
مړ شو۔ نو غلام قادر روهيله دَ پلار دَ جاګير ښتن شو۔

غلام قادر و شاه عالم باچا ته په عمومې توګه او
و هغه خلکو مرهټيانو ته په خصوصې توګه خښم نيولې وُو۔
او دا هغه خلک وُو، چا چه دَ غوث ګړه کانړی لوټې
ماتې کړې وې۔ دا وخت دَ مغول سلطنت ټول زور و طاقت
او دبدبه و شوکت ختم سوئ وُو۔ په مسلمانانو کې يواځې دَ
روهيله پښتنو لښ و ډير زور پاته وُو۔ او دَ هرچا سترګې دَ
دوئ و خواته وراوښتې نو دا وُو چه دَ قلعه معلّې ناظر منظور علي
چه دَ مغول باچا شاه عالم دَ مرهټه پرستئ او هندو دوستئ څخه
ډير تنګ وُو دَ غلام قادر خان سره يې دا مشوره وکړه چه مرهټيان
به دَ دهلې څخه دباندې وباسو۔ او دَ نورې سره څخه به دَ مغول
سلطنت وقار او عزت قائم کړو۔ دا وخت لکه څنګه چه د مخه
وويل شو۔ نامتو مرهټه سردار ماده هوسيند سيا ګواليار
ته تللې وُو۔ نو غلام قادر دَ خپلو څو ملګرو سره دَ ډيلي (دهلې)
بخوا رامخ کې منظور علي بې د څه جنګ و مقاومته پر ډيلي باندې

دَ دهٔ قبضه ور وکړه - او دا رنګ غلام قادر دَ خپل پلار ونیکه منصب امیرالامرائی ترلاسه کړه - دَ دربار امیران چه دَ شاه عالم د حرکتو او کړدو څخه ډیر تنګ وُو - دَ غلام قادر پخواسو. غلام قادر دَ علی ګړه کلا دَ مرهټیانو څخه واخسته دَ دے وروسته یې دَ اسماعیل بیګ په کومک او مرسته دَ آګرے محاصره وکړه - پر ۱۶ رجب ۱۲۰۱ ه باندے ډیر زبردسته جنګ وسو - او مسلمانانو سخت جنګ وکړ، په دے مابین کې دَ سهارنپور څخه داحال را ورسیدئ چه سیکانو په داعلاقه کې زور زیاتے شروع کړے دہ - نو غلام قادر خان مجبوره سو خپلی علاقے ته ولاړئ -

په ۱۲۰۲ هجری کې غلام قادر بیا ډیلی ته راغئ - خو شاه عالم باچا په پټه سیند هیاله حال ور واستاوئ او هغه یې راوغوښتئ دَ باچا په دے حم ټول مغول امراء او ټول فوج دَ ده څخه بد ظنه او خوابدی سُو - او دَ غلام قادر پخواسو - باچا ډیر وبیریدئ - او غلام قادر یې بیا امیرالامراء جوړ کئ - غلام قادر دَ باچا څخه خزانه وغوښته چه دَ نوی سره څخه فوج تیار کړئ او دَ مرهټیانو څخه هغه ټوله علاقه بیرته ونیسئ چه شاه عالم په خپل لاس و مرهټیانو ته ور کړے وه - دَ مغول دربار ټول کاردارانو دَ غلام قادر خان دَ دے خیال په تائید کې وُو - خو

هندو خزانچي سیتل داس د پیسو ورکولو څخه انکار وکړو - غلام قادر
ته معلومه سوه چه دا د باچا په زړه داسې کوي - غلام قادر وشاه
عالم ته وویل چه ځکه د فوج انتظام وکړه نو به د مرهټیانو طاقت
پاش پاش کړ - ده ورته وویل چه زمانیکه تخت ته ستا ملګرتیا
وکړه - او د مغول حکومت د ساتنې او حفاظت د پاره یې خپله
وینه او خوله یوه کړې وه - اوس ته په خپل لاس لغه حکومت
و مرهټیانو ته ورکړے مګر شاه عالم د ده پر خبرو غوږ نه و نیو ورو ته
غلام قادر د خپل ځان او د حکومت مغلیه د حفاظت د پاره دا غوره
بلله چه شاه عالم یې معزول کې او پر ۲۲ شوال سنه ۱۲۰۲ هجري یې
د احمد شاه زوئ بیدار بخت پر تخت کښیناوئ - ولې چه
غلام قادر خان د باچا پر مرهټه پرستۍ او د روهیله کانو پر تباهي
ډیر په خښم وُو - نو یې د قلعه معلّی لوټل وکوټل شروع کړو -
د غوث ګړه د لوټ پر وخت چه د غلام قادر پر کورنۍ کوم حال
تیر سوی وُو - تر هغه زیات بدله شاهي خاندان سره وسو -
د غلام قادر د انتقام او کسات په ژبه تر حده تیره سوې وه -
پردے حده سنه ۱۲۰۲ھ ده - شاه عالم دیوانِ عام له راوغوښتی او پیسے
یې څنې وغوښتې د هغه پر انکار یې باچا را ګوزار کړ - او په خپله پیشت
قبضه یې ستر ګی څنې وکښې - پردے خبره ټول امراء او د سلطنت
ارکان د غلام قادر مخالفان سول - او د ده سره چه یې کوم د ځان ملګري ورو هي

کړو۔ او میر تهاله ولاړ ئ۔ پردے موقع شاه عالم چه په خپله شاعر هم وُو۔ او په اردو کے یے "بادشاه" او په فارسی کے یے "آفتاب" تخلص وُو۔ یو څو دَ غم او سوزه ډک شعرونه یے وویل چه دَ خپلے ناوسئ دَ شاهی کورنئ دَ بے کسئ او دَ مرهټانو او دَ انګریزانو دَ مدد نه خبرے یے کړے دی۔ دَ ئ وائي۔

بازاین چه حادثه برخاست پے خواری ما

داد بر باد سر و برگِ جهانداری ما

چشم من کنده شد از جورِ فلک بهتر شد

که نه بینم که کند غیر جهانداری ما

دار افغان بچه شوکتِ شاهی برباد

کیست جز ذات خدائے که کند یاری ما

شیر دادیم به افعئ بچه پروردیم !

عاقبت گشت به این جور پے خواری ما

په دا لوړو دوُو شعرو کے یے دَ غلام قادر روهیله خبرے وکړے چه ما احسان ور سره کړے وُو ده لکه دَ مار زوئ بنو راسره او کړو او پښتانه ملک زموږ باچهی را خرابه کړه۔ او س بیا دَ خپلو امیرانو دَ غدارئ حال بیانوی۔ چه دَ ده دَ سترګو په خوخوشحاله وُو۔ او وائی۔

گل محمد که ز مردان به شرارت کم نیست

چه قدر کرد ؛ کالت به گرفتاری ما

ہم الہ یار و سلیمان و بدل بیگ لعین
ہرسہ بستند کمر بہر دل آزاری ما!

بیا په ما دھوجی سیند ھیالوری چه دہ د "فرزند جگر بند" او د
سلطنت اول خطاب ورکړې وُو۔ او وائي چه د اوده آصف الدوله
او انګریزانو به زما کومک له راسی۔ د آصف الدوله جانشین
شجاع الدوله او انګریز ګورنر جنرل لارډ هیستنګز په کړه د پښتنو
روهیله کانو باچهی ورخوا په کړې۔ او حافظ رحمت خان بریځې په
۱۷۷۶ عیسوی کې شهید کړې وُو۔ شاه عالم وائي ـ

مادھوجی سیند ھیا فرزند جگر بند من
ہست مصروف تلافی ستمگاری ما
آصف الدولہ و انگریز کہ دل سوز من اند
چہ عجب کہ بنمایند مددگاری ما

دا شعرونه واقعي چه دردناکه دي۔ مګر دا کتل پکار دي
چه شاه عالم زیات ظالم وُو۔ او که غلام قادر روهیله۔ شاه عالم هغه
سړې وُو۔ چه د کافرو مرهیانو په لاس یې څو کاله د مخه د خپلو
نمک خوارانو او وفادارانو پښتنو روهیله کانو یعنې ضابطه خان
کورونه ورانه کړې۔ او بې عزتي یې ور رسولې وه۔ او د ضابطه خان
کشتئ زوئې غلام قادر یې نه یوازې په مال غنیمت او لوټ کې
خپل حرم ته راوستلې۔ بلکه خصي کړې۔ او د ټول عمر

دَپاره دَ مردمیٔ دَ جوهره څخه محروم کړې وُو۔ او داسې ئې دَدې دَپاره چه دَ هلکینَ یو څو ورځې وده ته رقص و نځا وکې۔ دَدې په مقابله کې چه غلام قادر دَ ده سترګې ځنې وکښې نو ده دَخپل عمر ترنیځوس زیات کلونه تیر کړې وُو۔ دَاردو نامتو شاعر علّامه اقبال نهم دَدې واقعې ته اشاره کړې ده چه وائي۔

روہیلہ کس قدر ظالم، جفاجو، کینہ پرور تھا
نکالیں شاہ تیموری کی آنکھیں نوکِ خنجر سے

مګر دا الم یک طرفه فیصله ده۔ وروسته علّامه اقبال دا سبق دَدې قصې څخه را ایستلئې دئې۔ ع

حمیّت نام ہے جس کا گئی تیمور کے گھر سے

دَ شاه عالم دَدې فریاد په جواب کې سیند هیا دراهاغان په مشرئې کې په غلام قادر خان پسې فوج واستاوئې۔ دې فوج غلام قادر راګیر کړئې او په ربیع الاول ۱۲۰۳ هجرې کې یې وئیو۔ او سیند هیا دَ شاه عالم په انتقام کې غلام قادر روهیله ټوکرې ټوکرې کړئې۔ سیّد الطاف علی بریلوی په خپل کتاب "غلام قادر روهیله" کې لیکې چه سیند هیا غلام قادر په ډیر عذاب مړ کړئې۔ یو ورځې لاسونه ځنې پرې کړو۔ بیا یې پښې ځنې پرې کړې۔ او بیا یې پوزه وغوږونه ځنې پرې کړو۔ او بیا یې دارنګه په ډیره وحشیانه طریقه سره مړ کړئې۔

داؤد دَ مغولو دَ وفادارئ یو ے ابدارئ پښتنے کورنئ حسرتناک اَنجام۔

دَ غلام قادر روهیله دَ مرګ وروسته دَ هند دَ مرهټیانو دَپاره بله هیڅ خطره نه وه۔ نو مادهو راؤ سیندهیا، شاه عالم چه اوس ړوند وُو۔ دوئم وار مصلحتاً پر تخت کښیناوئے۔ او ټول اختیارات ئے په خپل لاس کښے واخستل۔ دَ باچا دپاره ئے دَ کال نه ۹ لکه روپئے دخرچ وخراجات دپاره منظور کړے۔ مرهټیانو به دَ ډیلے (دهلی) باچا او دَ ډیلے مُلک ډیر زیات تنګول۔ پیسے به ئے هم نه ورکوُلے۔ وروسته شاه عالم دَ خپلے پنځمے مائنے زبدة النسا، په وُیلو سره چه یوه هوښیاره ښځه وه وانګریز ګورنر جنرل لارډ ویلزلی ته ولیکل چه مادَ مرهټیانو څخه خلاص کړه۔ دَ لارډ ویلزلی په حکم سره کمانډر انچیف لارډ لیک پر ډیلے باندے یرغل وکړ۔ دوئم مرهټه جنګ ډیر په زور سره اوسو۔ دَ دولت راؤ سیندهیا دخوا دَ وُه فرانسیسی جرنیل بولین جنګیدئے۔ مرهټیانو شاه عالم هم دَ انګریزے فوج په خلاف دجنګیدو دپاره مجبور کړ۔ باچا پر فیل سپور وُو۔ دَ زبدة النسا، په وُیلو به ئے اوس پورته کړئے۔ او غشے به ئے غور ځول۔ په سترګو څوئے څه نه لیدل۔ په دے مابینے کښے زبدة النسا، دَ باچا

دَ مهر یوه چیتۍ ولارډ لیک ته ور واستوله. چه په هغه کې یې خپله مجبوري څرګنده کړې وه - پر ۱۱ ر ستمبر ۱۸۰۳ عیسوي مرهټیانو ماته وخوړله او انګریز بریالي شو - د لارډ لیک شاه عالم له راغی - او ور ته وې وویل چه حضور دَ مرهټیانو دَ قیده څخه آزاد شو - زبدة النساء دَ باچا دَ طرفه ور ته وویل چه باچا و تا ته "دَ فرزند دلبند" خطاب درکوي - او مبارکي فتح مبارکي درکوي - لارډ لیک خپله ټوپۍ دَ سره پورته کړه - او و باچا ته یې سلام وکړ - بیا دَ لارډ لیک په حکم سره دَ ګورګانو یوې پلټنې و شاه عالم ته سلامي ورکړه - او تر دې وروسته باچا په سره کلا په ډیره دَ ربدبه و دریز سره ننوت - او پر تخت کښیناست -

پر ۱۴ ر ستمبر ۱۸۰۳ عیسوي کې انګریزي فوج تر جمنا راپورې ووت - او پر دهلي یې قبضه وکړه - پر ۱۶ ر ستمبر لارډ لیک په ښار کې راداخل شو - دَ ښار وګړي او په تیره بیا مسلمانان چه عزت و آبرو او مال یې دَ مرهټیانو د لاسه تل پائمال او په خاورو لړلي وو - ډیر خوشحاله شو - انګریزانو جنرل اکټرلوني (OCTERLUNI) په مغول دربار کې دَ انګریزي حکومت له خوا ریزیډنټ ولګاوه - انګریزانو پر ۲۳ ر مئ ۱۸۰۵ عیسوي کې شاه عالم خبر کړ چه موږ له

تاسره دالوظ نامه کړو چه هغه علاقه چه د دهلي شاو خوا د جمنا د رود پر غاړه پرته ده، د باچا د خرخ د پاره به د دوه وي - د ما لياتو وصولي او د انصاف قيام به د انګريزي قوانينو په رڼا کښې د باچا د نامه څه وي - باچا به د دهلي د ښار او د شاو خوا خاص علاقې د پاره يو ديواني او يو فوجي شرعي عدالتونه قائموي - د مرګ سزا به د باچا د اجازت و جاته نه ورکول کيږي - او د چا اندام به نه پرې کيږي -

په نومبر ۱۸۰۶ع ۷ رمضان ۱۲۲۱ هجري کښې شاه عالم باچا په داسې حال کښې مړ شو - چه د حکومت مغليه بېړۍ يې غرق کړې وه - د دوه د حکومت ټول ميعاد ۴۸ کاله وو - په دې کښې يې ۱۷ کاله په بهار و په اله آباد کښې تېر کړو - ۱۷ کاله يې د سترګو سره او ۱۹ کاله يې بې سترګو په دهلي کښې تېر کړو - دا رنګه د مغلو د زوال او د تباهۍ د داستان سره سره د نواب نجيب الدوله د کورنۍ رومان پرور داستان هم سر ته رسيږي -

چاپ سوې مياشتيزه اولس کوټه نومبر / دسمبر ۱۹۷۴ع مئ ۱۹۷۵ع جون ۱۹۷۵ع وغيره -

# بهلول لودی

# او حمید خان

بهلول لودی په هندوستان کی د دیو پښتنی کورنی اول باچا وُو۔ دی په ۱۴۵۰ع ۸۵۴ھ کی مړ سو۔ بهلول لودی چه په کچنیوالی یې "ملو" بالی۔ د لودی پښتنو د پښنی ځمنه وُو۔ د ده نیکه کان به د سوداګری د پاره هندوستان ته تلو راتلو۔ د فیروز شاه تغلق په وخت کی د بهلول لودی نیکه ملک بهرام د خپله وروره ځنه خوابدی سو۔ او ملتان ته ولاړی۔ هلته دی د ملک مردان دولت سره چه د ملتان حاکم وُو۔ نوکر سو۔ د ملک بهرام پنځه زامن وُو۔ ملک سلطان شاه، ملک کالا۔ ملک فیروز، ملک محمدؐ۔ او ملک خواجه دغه ورونړه د خپل پلار تر مړګ ورسته هم په ملتان کی اوسیدل۔ کوم وخت چه د فیروز شاه تغلق په زمانه کی خضر خان د ملتان حاکم سو۔ نو د ملک بهرام مشر زوی ملک سلطان شاه د ده نوکر سو۔ په هغه جنګ کی چه خضر خان د ملو اقبال سره وکړ۔ سلطان شاه هم چه د پښتنو

سردار وُو دَ دهٔ سره ملگرے وُو۔ او هغه سلطان شاه ملوّ اقبال سرکړه۔
پردے باندے خضر خان دَ سلطان شاه ځخه ډیر خوشحاله سُو۔ او
ودهٔ ته یئے دَ اسلام خان خطاب ورکړ۔ او دے یئے دَ سرهند حاکم
کړ۔ دَ سلطان شاه نور ورونړه هم دَ دهٔ سره اوسیدل۔ په هغوکی
یو ملک کالا (یا ملک کلا) وُو۔ چه هغه سلطان شاه د دوراله حاکم کړ۔
ملک کالا ته دَ خپل اکا لور ناسته وه۔ دا ښځه ترخونه لاندے سوه او مړه سُوه۔
دا ښځه حمله اره وه۔ او دَ لنگیدو شپے یئے وے۔ دَ دے نس یئے حله ځیر
کړ۔ او دَ هلک یئے ځینے راوکښنه۔ هلک ژوندے وُو۔ هغه هلک
بهلول لودے وُو۔ دا هلک دَ خپل اکا اسلام خان کره لوئے سُو۔
دَ دهٔ پلار ملک کالا چه دَ ک لاکښنک وُو۔ دَ تاتاریانو په یوه جنگ کے
مړسوے وُو۔ یو وخت چه "ملو" په یو جنگ کے یئے ډیره زړه ورتیا او
دلاوری وکړه۔ نو خپل اکا اسلام خان ودهٔ ته خپله لور ورکړه۔
اسلام خان په پائے کے ډیر فوج درلود۔ د وُولس زره پښتانه چه
عزیزان یئے وُو۔ یائے دَ خپل قام وُو۔ دَ دهٔ سره ورسره وُو۔ کوم وخت
چه اسلام خان مړکیدائے نو دهٔ ملک بهلول پر خپل ځائے باندے
ودراوے۔ دَ اسلام خان دَ مرگ پس دَ دهٔ دَ نوکرانو درے[3] چلے سوے
یوه چله دَ دهٔ پر وصیت باندے ولاړه او دَ ملک بهلول ملگرے
یئے شروع کړه۔ او یوه چله دَ ملک فیروز پخوا سوه۔ چه دَ بهلول
اکا وُو۔ ځنے پښتانه بیا دَ اسلام خان پر زوئے قطب خان باندے

راتلونکی سو۔ یو څو موده ملک فیروز او قطب خان د ملک بهلول مخالف وُو۔ آخر بیرته د ده ملګري شو۔ ملک بهلول کرار کرار علاقې نیولې او سرهند یې واخستې۔ دا د محمد شاه باچا د وخت وُو۔ چه په ذات سید وُو۔ د هغه سره د ملک بهلول څو جنګونه وشول۔ بیا څو موده پس ملک بهلول پانی پت هم واخستې۔

ملک بهلول د دې پس وحسام خان ته چه د دیلې د باچا محمد شاه وزیر الممالک وُو۔ ماته ورکړه۔ او باچا ته یې داخط ورواستو چه زه د حسام خان له کبله ستا نوکري نه سم کولای۔ ته دې مړ که او حمید خان وزیر که۔ نو به زه ستا حکم ومنم۔ دا حمید خان د فتح خان زوی وُو۔ باچا هم حسام خان برناکه وُوژلو او حمید خان یې وزیر کړې۔ ملک بهلول لودي ذ باچا نوکر شو۔ او باچا ورته د سرهند او د هغه ځای د شاو خوا علاقې جاګیردار کړ۔ کوم وخت چه د مالوې باچا محمود خلجي پر دیلې باندې حمله وکړه۔ نو محمد شاه باچا د بهلول لودي څخه کومک وغوښتې بهلول سره د شلو زرو لښکرو د باچا مدد له ورغې او په دا بله ورځ چه محمود خلجي شکست وخوړې نو باچا و بهلول لودي ته "د خان خانان" خطاب ورکړې۔ او بهلول لودي د باچا په حکم سره د سرهند، لاهور، دیبالپور سام او نورې علاقې په خپله قبضه کې کړې۔ او بیا یې د باچا خلاف جنګ شروع کړې او پر دیلې یې حمله وکړه۔ یو څو عمر یې د دیلې

محاصره وکړه ـ مګر بنارئیے نه کے فتح بلیرته سرهند له راغے او دخانے
دپاره یے دَ سلطان محمد لقب غوره کړ.

محمد شاه باچا په ۸۴۹ه کے مړسو ـ نو دَ ده زوئے

علاو الدّین باچا سو ـ په ۸۵۱ه کے علاو الدین بدایون له
ولاړے ـ دَ بد ایون هوا ده ډیره خوښه سوه ـ یو څو عمر هلته وُو ـ چه
بیرته ډیلے له راغے وئیل یے زما د بدایون هوا ډیره خوښه ده زه هلته اوسم ـ
امیرانو ډیر ورته وویل چه بدایون څه کوے بدایون پریږده ـ
لاکن دَ ده زړه په هغه خوا وُو ـ دا باچا په هیڅ شي کے فکر نه کاوئے ـ
چه امیرانو به یو څه ورته وویل ده به هغه کول ـ امیرانو ورته
وویل چه حمید خان د زیر چه دئے موږ ډیر حیٖن یه عذاب
یو هغه بندی که ـ باچا دستے حمید خان بندی کے بل وار
چه باچا په بد ایون کے وُو ـ امیرانو ورته وویل چه موږ دَ حمید
خان په ژوند نه یو رضا ـ دا مړ که ده دَ هغه د مرګ حکم ورکړ ـ
حمید خان چه په دا خبر سُو ـ دَ قیده څخه وتښتید او ډیلے لـه
ولاړ ـ

ملک محمد جمال چه پر حمید خان باندے پیره دار وُو ـ هغه
په حمید خان پسے ډیلے له ورغے ـ او دَ ده پر کور یے جنګ ورسره
شروع کے ـ جمال خان دَ یوه غشے څخه مړ سُو ـ او حمید خان
دَ باچا په ماڼئے ور ننواتے ـ د باچا دَ کور ښځے او ښځوڼے او هلکوان
یے لځ سر و لځے پښے له کوره وایستل ـ او تر ښار یے د باندی کړو ـ

دَ باچاهتولے خزانے اودَ باچهی اسباب یې په خپله واخیست. اوس
حمید خان داغوښت چه دَ جونپور باچا سُلطان محمُود شرقی چه
دَ علاؤ الدّین قریب وُو. پر تخت کښینوی. او اختیارات یې
دَ ده په لاس کښے وی. بهلول لودی چه دا حال ولیده نو پر
ډیلے یې حمله وکړه. او قبضه یې پرې وکړه. و باچا ته یې حال
ور واستوئے - چه ما د حمید خان قصّه سره سمه کړه. او ستا نوم
ہے دَ خطبے څخه نه دی ایستلے دا وخت بهلول لودی په دیبالپور
کښے وُو. او ډیلے یې وخپل زوی بایزید او نورو خپلو امیرانو ته ورپرے
ایښے وُو. باچا دَ بد ایون څخه حال ورا ولیږه چه زما پلار
وتا ته زوی وئیل. نه زمالوئے ورور یې - ما دَ ډیلے باچهی وتا ته
در وبخښله - زما بد ایوان بس دی -

بهلول لعم دستے په ۸۵۵ھ کښے دَ علاؤ الدّین نوم دَ خطبے
څخه وایستے او چتر شاهی یې پر خپل سر باندی ودراوی -
علاؤ الدّین په ۸۸۳ھ کښے په بد ایوان کښے مړسو. کوم وَخت چه
بهلول لودی په ۸۵۴ھ کښے ډیلے ونیو - نو حمید خان یې لعفه
رنګه وزیر پریښوُو لکه د مخه چه وُو. بیا یې یو کال ورو سته
په چم سره قید کړے - دادَ حمید خان دَ قیدُولو قِصّه ډیره عجیبه دِلچسپه
ده چه زه یې اوس لر پر مخ بیانوم -

دَ بهلول لودی نه زامنے وُو. بایزید نظام خان چه بیا

دسکندر لودي په نامه سره باچا سو- باربک شاه، مبارک خان- عالم خان
چه د علاؤالدین باچا په نامه سره مشهور وو- جلال خان میان یعقوب
فتح خان- میان موسیٰ او جلال خان د جونپور باچا محمود شاه
شرقي په ۸۵۵ھ کې پر ډیلي حمله وکړه- او ډیر زر محاصره یې وکړه.
دا وخت بهلول لودي په دیبالپور کې وو- چه په دې خبر سو-
چابک راغئ او و محمود خان ته یې شکست ورکړ- او س د ده
باچهي مضبوطه سوه-

بهلول لودي د میوات وخواته ولاړئ- احمد خان میواتي
د ده اطاعت قبول کئ- بیا برن ته ورغئ- د سنبل حاکم دریا خان
لودي د ده اطاعت قبول کئ- او اوه فیلان یې ورکړه. بیا یې خو
نورو ځایو له ورغئ- هر چا یې اطاعت قبول کئ- د جونپور باچهانو
به همیشه پر ډیلي حملې کولې- آخر ډیره موده پس بهلول لودي
جونپور فتح کئ او خپل زوئ باربک شاه یې د جونپور حاکم مقرر کئ-
بهلول لودي په ۸۹۴ھ کې مړ سو- ده اته دیرش (۳۸) کاله اته
میاشت او اوه ورځې باچهي وکړه. ټول شمالي هندوستان د ده تر باچهي
لاندې وو- بهلول لودي بنه دیندار سړئ وو- د نورو پښتنو تر مخ
به پر تخت نه کښیناستئ پر ځمکه به کښیناستئ- ده چه پر ډیلي
قبضه وکړه نو د ډیلي خزانې یې و ټولو پښتنو ته ور وبیشله او بخپله
یې هم د عوني قدر برخه واخسته لکه د نورو پښتنو په خپل کور کې به یې

دَ باچهئ چه وړئ نه خوړله۔ دَ یو امیر دَ کوره به یې چه وړئ راوغوښته خوړله به یې دَ باچهئ پرآس به نه سپریدئ۔ همیشه به دَ یو امیر پرآس سپریدئ۔

اوس نو زهٔ دَ حمید خان وزیر قِصّه کوم چه داتیرې خبرې مې دَ دې قصّې دَ پاره وکړې۔ دَ حمید خان دَ پلار نوم فتح خان وُو۔ دَ سادات خاندان دَ اوّل باچا پس دَ خضر خان لمسئ سیّد محمّد شاه دَ بهلول لودی په وسیلو خپل وزیر حسام خان مړ کړ۔ او حمید خان یې وزیر کړ۔ او یو بل سړې ته یې دَ حسام خان خطاب ورکړ۔ او هغه یې نائب وزیر مقرر کړ۔ بهلول لودی چه ډیلئ ونیوئ نو هغه وخت حمید خان دَ علاؤ الدّین وزیر وُو۔ بهلول لودی هم لومړې وار حمید خان د هُغه تخته نه وښورولې۔ لاکن دائې ورته په زړه کې وُو چه یو وخت به یې دَ وزارت تخته غورځوم۔ په ظاهره یې دَ حمید خان ډیر لحاظ کوئ۔ او دَ دهٔ کره به ورتې۔

یو څو موده پس بهلول لودی وخپلو ملګرو ته ووې چه تاسې هم نن دَ حمید خان کره راسئ چه زهٔ هلته یم۔ او دَ دهٔ په مجلس کې قسم قسم دې عقلا نو چیو نه شروع کئې۔ او و تاسې ته به هیڅ نه وائې۔ او دَ مجلس تخته به مود باندې نه باسې۔ بهلول لودی دَ حمید خان سره ناست وُو۔ چه دوئ هم ور ننواتو او عجبه عجبه چونه یې شروع کړو۔ چا خپلې پیزرې راواخستې تر ملایې و تړلې چا خپل کمربند ونه

په لاس کې ونیول او دَ حمید خان تر سَرېٔ پورته په هوا ونیول حمید خان ورته وُئیل داڅه کوې. دوئ وُئیل چه موږ پردې بیدیږو چه غلهٔ یې راځخه یونسي.

بیا یو ساعت بعد یې وحید خان ته ویل چه دا ستا کمبل ډیری بنایُسته دی، که یوه کمبله وموږ ته څُئ راکړي موږ به خولې او کمربند و نه څُئ جوړ کړو. او خپلو زامنو ته به یې په سوغات کې ورواستوُو. نو به دوئ هم په دې خبر سي. چه حمید خان زموږ دَ پلره وسره ډیر ښه کوي. حمید خان پردې خبره باندې وخندل. او ودوئ ته یې وویل چه زه به تاسو ته دَ ښځې ودَ زرلفته تپوکران درکړم. دَ هغه ځخه د غه شیان جوړ کړئ.

لږ ساعت بعد خوشبوُیه شیان مجلس ته راوړل سوه. څنو به لپښه په عطر وکګنږه کړه او لږ اهاک به یې هم په کې واچول. او دغه به یې وُچیښل. چا به کلان راواخستل او به یې خوړل. چا به یو څه اهاک راواخستل او بے پانه به یې خوړل چا به دَ پان پانړه خلاصه کړه. اهاک به یې څيښې وتخیل او پانړه به یې د غسې پریښوُوله کوم وخت چه به یې خولے اور واخستې. ناری وچیغاری به یې شروع کړې. حید خان به پر وخندل اَو بهلول لودی ته به یې وُویل چه دا عجیبه خلک دي. بهلول لودي ورته وُئیل چه خان صَاحب دا خلک صحرایان دي. دَ کلو او سیدونکي دي.

بے عقلان دی۔ دَ هوښیارانو خلکو سره او دَ لویو خلکو سره نه دی
کښېنستلی۔ هیڅ یې هم نه دی زده۔ بے خوړلو او بے پروتي به په
هیڅ شی نه پوهیږی۔

دَ دے قصے وروسته چه یو کوم وخت بهلول لودی دَ حمید
خان میلمه سو۔ نو پهره دارانو به نور ملګری دننه نه ور سره
پریښوول۔ او یوازے دی به دننه تلی۔ دَ ده ملګری به دَ باندی
کښېنستل او هلته به یې ډوډۍ خوړله۔ یو ځل بهلول لودی
به دَ حمید خان سره ډوډۍ خوړله۔ یوه ورځ بیا حمید خان دَ بهلول
لودی ډوډۍ وکړه۔ داوار چه پهره دارانو دَ بهلول لودی
ملګری را وګرځول چه دننه مه ځئ۔ نو دَ بهلول لودی په ښوونه
دوی د پهره دارانو په خوله نه وکړه۔ او په زوره یو څو کسان دَ حمید
خان په ماڼۍ ور ننوتل۔ او چه دننه ور داخل سول۔ دستي یې
و بهلول لودی ته خنجر و بنګښا وکړه۔ او ورته وی ویل چه ته
څوک یې چه په زوره موږ دَ خان د سلام څخه ګرځوی لکه څنګه
چه ته دَ ده نوکر یې سلام له یې ورځي۔ موږ یې هم دغسی نوکران
یو سلام له یې ورځو۔ لکه خان چه ستا دوست دی، دغسی د موږ
سره هم ښه دی۔

حمید خان چه دغه خبری واوریدے۔ په زوره یې پر خپلو
پهره دارانو باندی رنځ کی۔ چه خبردار دغه خلک (دَ بهلول لودی

ملګری اچه ونه ګرځوئ - لیخ چه ورته ونه وایاست . ګرد راپریږدئ
چه راسی دربار له پښتانه ګرد په یو وار سره راننوتو - او دوه دوه
کسه حمید خان د نمر پهره دار پر څنګ ورته ودرول - د حمید
خان دا پهره داران پرده باندی شاوخوا راګرځیدلی وو . قطب
خان لودی چه د اسلام خان لوئ زوئ وو - او د بهلول
لودی تربور وو - د بغله څنه خنځیر راوکښی او د حمید خان و مخ
ته یئ کښینبوئ او ورته وی وی چه ستا دپاره دا خبره ښه ده چه
ته اوس دا پاته عمر د خدائ په عبادت کی تیر کړی - او د حکومت
له کاروڅخه لاس واخلی - ولی چه ما ستا نمک خوړلی دی نو زه تا
نه مړ کوم -

دغسی یئ حمید خان ګرفتاره کړ - او قید یئ کی - دا
قصه په ۸۵۵ هـ کی پیښه سوه - حمید خان د هندوستان اوسیدونکی
وو - مؤرخینو د ده د ذات په باره کی څه نه دی لیکلی -

چاپ سوی میاشتیزه اولس

پښتو اکتوبر ۱۹۷۲ء کوټه

# دَ ۱۸۵۷ دَ خپلواکۍ دَ جنګ

# پښتون مشر — جنرل بخت خان

---

مغول چه هندوستان ته راغلو نو د پښتنو باچهي وه
بابر د پښتنو څخه واک ترلاسه کړ۔ دَ بابر څخه تر بهادر شاه ظفر پورې
پښتنو او مغلو یو بل ته دَ کینې وکست په نظر کتل۔ دَ بابر په وخت
کې دَ ابراهیم لودي دَ اکا محمود لودي دُوه سره شخړه دَ همایون په وخت کې دَ
شیر خان سور په ده پسې کیدل۔ دَ اکبر په وخت کې دَ دهٔ او سکندر سور
او ابراهیم سور سره جنګیدل۔ او دَ یوسفزیو دَ بیربل وژل او دَ پیر روښان
جنګیدل دَ جهانګیر په وخت کې دَ مهابت خان سرا خستل او دَ شاه جهان
په وخت کې دَ خان جهان لودي (بغاوت کول) او دَ هغه په دکن کې وژل
کیدل۔ دَ اورنګزیب په وخت کې دَ دهٔ سره دَ خوشحال خان ده غرنۍ وهل
دَ دې خبرې بشپړه ثبوت دی۔ بیا چه مغول کمزوري سو۔ نو لیښ تنو
بیرته لاس پرکینبوو۔ دَ محمد شاه رنګیلا دَ عالمګیر ثاني او دَ شاه عالم په وخت

کې هم احمد شاه بابا پر هند یرغلونه جاري وساتل چه زیاتره ئې د مرهټیانو سیکانو او نورو هندوانو طاقت ورماتوئ - په دغو شپو کې د اوده حافظ رحمت خان بړیځي او د نجیب آباد نجیب الدوله یوسفزئ هم د مغلو خواخوږي وو - نجیب الدوله او بیا د ده زوئ ضابطه خان او بیا د هغه زوئ غلام قادر روهیله خو د شاه عالم ثاني تر وخته پورې د مغول سلطنت "د امیر الامراء" په توګه د باچهئ کار چلاوندوو -

د پښتنو او د مغولو دغه اختلاف یا رقابت به کله شعوري او کله به غیر شعوري وو - کله به شک و اختلاف د پښتانه له خوا وو - او کله به د مغول د لورې - د بابر څخه تر اورنګ زیب پورې داسې وو چه عمل به د مغولو د خوا څخه وو - او ردعمل به د پښتانه له خوا وو - مګر تر اورنګ زیب وروسته چه د مغولو باچهي په ښوره کې سوه - نو پښتانه د کومکي په حیث راپر مخ سو او خپل اوچت کردار ئې ادا کړ - خو هغه د پیړیو پیړیو د سیالي رقابت او اختلاف خبره د زړه د مغولو د زړونه وُوته - او د دغه شک په فضاء کې موږ د تاریخ پر پاڼو د جنرل بخت خان روهیله پښتانه نوم لولو خو وروسته او بیخي کمزورې مغول پاچا بهادر شاه ظفر د شک له کبله هغه خپل تاریخي کردار نه کړ تر سره - کې د هند د مسلمانانو تاریخ شاید چه هغه ډول نه وائي غوره کړئ لکه څرنګه چه یې وروسته غوره کړ -

جنرل بخت خان چه د ۱۸۵۷ء خپلواکۍ د جنګ یو لوئ لمیر وتیر سوئ دی - یو لوئ باتور. سټر جنرل ابداره پښتون او تکره ځوان ؤ. ده ته روهیله ځکه وئیل کیده چه روهیله یو عام نوم ؤ. چه هر هغه پښتانه ته وئیل کیدۍ چه هغه د روهیلکنډ په حدودو کې اوسیدئ - او روهیلکنډ د "روه" څخه راوتلئ او جوړ سوئ نوم دئ -

"روه" "یاکوه" (غر) پخوانیو تاریخ لیکونکو د پښتنو وطن ته وئیل داسې معلومیږي چه بخت خان په ذات یوسفزئ پښتون ؤ. جنرل بخت خان د عبدالله خان روهیله زوئ ؤ. کوم وخت چه د هندوستان فرنګي ګورنر جنرل وارن هیسټنګز د اوده د غدار نواب شجاع الدوله سره سازش وکړ او د حافظ رحمت خان بریځي کورنۍ یې سره شتو پټو کړه. نو عبدالله خان لم خپله کورنۍ د اوده یو ځای سلطان پور له بوتله او هلته یې واړول. عبدالله خان یو بنایسته ځوان ؤ. ډیره ښه سکه یې درلوده - د شجاع الدوله د کورنۍ یوه شهزادۍ پرده باندې عاشقه سوه. نو دغه ؤ چه عبدالله خان هم د دې شهزادۍ سره واده وکړ او د دې څخه بخت خان پیدا سو.

بخت خان لا کوچنئ ؤ چه د وسلو او د جنګ تول چرنه یې زده کړه - کوم وخت چه دئ ځوان سو نو یې د انګریزانو

ملازمت شروع کړه۔ او په فوج کې شامل سو۔ بخت خان دخپلې
زړورتیا، مړانې او هوښیارۍ له کبله ډیر ژر ترقي وکړه۔ کوم
وخت چه انګریزانو په ۱۸۳۹ع کې پر افغانستان باندې یرغل
وکړ۔ نو بخت خان هم د انګریزد فوج له خوا په ډیر زوراو مړانه
سره وجنګیدئ۔ پردې باندې انګریزانو بخت خان د توپ خانې
لوئ افسر مقرر کړ۔ مګر د بخت خان د زړونو دا یوارخ د ستائنې
وړ نه دئ چه دئ د خپلو پښتنو ورونو په مقابل کې وجنګیږي
دغه وُو چه ورسته فرنګیانو دئ بریګیډیر جنرال وټاکئ۔
د بخت خان فوجي کردار او د ده کار داسې مؤثر وُو۔ چه انګریز
به د ده لیاقت منئ او د ده به یئ ډیر احترام کوئ۔
په کال ۱۸۵۷ع کې د مئ د میاشتې پر لسمه په هندوستان
کې د انګریز څخه خلکو بغاوت وکړ۔ د مئ تر ۳۱ پورې بخت خان
انګریزان د بریلي څخه وایستل او قبضه یې پرو کړه۔ دلته
ده د حافظ رحمت خان لمسئ بهادر خان امیر کړ او ورسته
بخت خان د ډیلې پر خوا روان سُو۔ په ډیلي کې هغه وخت
د مغولو آخرې تش د نامه باچا بهادر شاه ظفر د انګریزانو د فوج
یاغې سپاهیانو او افسرانو د ټول هندوستان باچا کړئ وُو۔
بخت خان له بریلي څخه بدایون او له هغه ځایه څخه فرخ آباد ته
ولاړئ۔ پر لارې چه هر څو راجاګان و زمینداران په مخه ورغلو

وهغوته یې دا وویل چه تاسې به د موږ سره کومک کوئ.
د جولائی د میاشتې په دویمه ورځ بخت خان د ډیلي په ښار ورننوتی
د ده څخه یو څو لکه روپۍ وې. او درې رجمنټه فوج ورسره وو.
د ده د بهادر خان بریچې یو لیک هم را وړی وو. چه د بهادر شاه ظفر
پر نامه وو. په هغه کې یې دا لیکلي وو. چه انګریزان به د هندوستانه
څخه شړو او موږ روهیلان به تر آخره پورې د انګریزه سره غزا کوو
بهادر شاه ظفر د بخت خان په راتګ ډیر خوشحاله شو. او ده ته
یې زوی وګڼلی هغه ده ته توره او سپر ورکړ. او خپلو پلټنو ته یې
د ده د حکم منلو حکم ورکړ.

بخت خان هلته خپل فوجي دفتر جوړ کړ. د خپلوا کۍ
پتنګانو او وطن او قامي مجاهدانو چه زیاتره مسلمانان او یو څه
هندوان هم وو. د ډیلي د کلا دروازې بندې کړې. د انګریز
فوج ښار او خوا بر ښار باندې را وګرځیدې بیا ده د جولائی پر نهمه
نیټه سره د لښکرو فوجیانو پر انګریزي فوج باندې حمله وکړه.
او دیر هزاره میدان ته پرته واخستې. ډیر اسان او وسله
د بخت خان په لاس ورغله. بیا بخت خان درې پلټنې او
شپږ سوه سپاره سره د شپږو توپو باغپت له واستول. چه
انګریزان د یې د جوړولو څخه را وګرځوي. او بیا ډیر نور
سپایان یې علي پور له واستول. ماپښین خبر راغی چه

یاغیانو ډیر لوی برے موندلے دے۔ په دے خلک ډیر خوشحاله سو ۔ بخت خان د فوجو تربیت کوے ۔ او په نرمئے وخوشحالئے خبرئے ورسره کولے ۔ اود باچا دا خبره یئے وه دوے ته وکړه چه هر سړے چه بنه وجنګیږی ۔ ولفعه ته به پنځه بیګے مځکه ورکولے کیږی ۔ د بخت خان سره تلے ملایان هم راغلی وُو ۔ چه غازیان به یئے بلل ۔ دوے لهم د بخت خانه سره کار کاوے ۔ بخت خان مولوی سرفراز علی د ملایانو مشر مقرر کړے وُو.

په دے شخړه کی چه فرنګیان یئے غدر یعنی بغاوت بولی ۔ دا بغاوت هم دے د آزادی جنګ لهم دے ولی چه دوے خپله هیواد آزادوی ۔ د جګړے مرکزونه کانپور، لکهنو، او جالنسی لهم وُو ۔ خو زیاتره جنګ په ډیلی کی وسو ۔ پر ډیلی باندی د هندوستان فوجو قبضه لس څلور میاشتی څلور ورځی وه ۔ بیا بیر ته انګریزانو ونیوه ۔ دا په دے چه د بهادر شاه ظفر زوی مغل مرزا د ټول فوج کمانډر انچیف وُو ۔ لفعه د جنګ په چونه وُو خبر ۔ دویم دا چه د ومره پیسے نه وے چه فوج ته یئے تنخاوی ورکړے وائے ۔ د ډیلی د لویو لویو لهندوانو

دیوی سنګه او ساکه رام نخه باچا دویم وار پور وغوښتے خو هغو دویم وار پور نه ورکوے ۔ ولی چه د بهادر شاه ظفر اخښئے مرزا الهی بخش دوے خطا ایستلے ۔ دا مندار چه مامینه یئے د باچا د

د مائینه خوروه د انګریزانو ملګری وُو- بل شاهی طبیب
حکیم احسن الله خان لعم د دیلی د فوج یوه برخه تیرایسته چه
تاسی ولاړسئ نور وطن لعم وانګریزانو ته پورته کړئ مطلب
یې داوُو چه هندوستانی فوج به کمزوره سی او فرنګیان به
په آسانه پر دیلی باندی قبضه وکړی - بل داچه د بیګم
قمر په حویلی کی او وه سوه منه د باروتو ذخیره وه - دلته
څلورسوه څلورنوی (۴۹۴) کسانو باروت جوړول د احسان الله
خان د سازش له کبله دلته اور ولګید - ټوله ذخیره والوته
او ټول خلک یې سره سوه - دا د آزادئ د جرنیلی دپاره چیر لوی
تاوان وُو-

بهادر شاه ظفر چه دا وارویدلهٔ نو وار خطا سو- ساه واخسته
چه چیری خان پټ کړی - دغه شپه جنرل بخت خان
هم ښار خالی کی - او د باور وه سپاهیان یې ورسره بوتلو - او د جناد
رود پر غاړه باندی یې لښکر ودراوی - څوک څوک والی چه د ده
سره څلویښت زره فوج وُو - ده وبهادر شاه ظفر ته وویل چه
انګریزانو که څه هم د دیلی ښار ونیوی - بیاهم ته باک مه کوه -
ټول هندوستان زموږ بخوادی - ته له ما سره راځه - زه به وغرو
ته وخیژم او داسی مورچې به وفرنګیانو ته ونیسم چه د دوی هیڅ
وس به نه را باندی خیژی - په دی جنګ کی کار په دی خراب سو

چه ستاسو زوئ مغل مرزا د فوجو کمانډر وو. دې د جنګ په کار و قطار نه پوهیدې. که ده زما په کار غرض نه وائے درلود لے. ما به په هم دغه فوج وفرنګی ته ماته ورکړے وائے. اوس هم هیڅ نه دی سوی. هر ریاست د انګریزانو څخه خوبدی دی. کوم وخت چه موږ پر انګریزانو باندے لږ زور ورسوو. نو ټول هندوستان ریاستونه به له موږ سره ودریږی. ستا پر نیکه ګانو باندے ډیرے خوارئ ورغلی دی. پر بابر وپر همایون باندے څنګه خوارئ ورغلے. مګر دوئ آخر کار بیرته ځان ونیوئ. ته هم د مغولو سے یے. او پر تا خو د هندوستان د هر کښی ولوئ وسیله ده. ته له ما سره راځه زه به په ډیرو ډیرو قصه سره سمه کړم. او انګریزان به بیرته واخلم باچاو سے ته تیار سو چه د جنرل بخت خان سره ولاړ سی. خو خپل بے خیره اخښے مرزا الهی بخش خطا ایستی هغه ورته وویل چه دا خو پښتون دی. تیر به دی باسی. شیرشاه سور څنګه ستا نیکه همایون له هندوستان څخه وشاړئ. دغه وو. باچا هم تیر وتی. د بخت خان سره نه ولاړ. بخت خان ډیر خوابدی سو. ایکرسره د خپلو باتورو سپاهیانو روان سو. اول وار لکهنوو ته ولاړئ. هلته یو ځائے دوه د فرنګی خلاف مورچه ولګوله. خو هر ځائے غداران او جاسوسان ډیر وو. پائے ته جنرل بخت خان د خلکو د ستر ګو نهام سو. خدائے خبر چه دا تو ریالی ونګیالی په کوم

غرو ورغوکې پټ سو۔ چه ترڼت ورځې پورې ئې چانخنبه اولښات
نه کړئ پیدا۔ تر ډیرې مودې پورې خلک په دې باتو ره
جنړل پیسې کړ ځیدل۔ خو هیڅ درک یې نه وموندئ او ژوندئ
زانړئ ورک سُو۔

چاپ سوئ میاشتیزه "اولس" پښتو !

کوټه مارچ ۱۹۷۲ ع

# ہماری کتابیں

## علمی ادبی، لسانیات

| کتاب | مصنف | قیمت |
|---|---|---|
| ۲ + ۲ = ۵ | شمیم احمد | ۵۰/- |
| تاریخ جمالیات | سعید احمد رفیق | ۲۱/- |
| حقیقت حسن | سعید احمد رفیق | ۳۰/- |
| قہقہے | انور رومان | ۹/- |
| زبان کا ارتقاء | خلیل صدیقی | ۲۰/- |
| سندھی ادب کا ارتقا | ڈاکٹر حیدر سندھی | ۱۸/- |
| زبان کا مطالعہ | خلیل صدیقی | ۲۰/- |
| ایک اداس کتاب | امرتا پریتم ترجمہ احمد سلیم | ۲۰/- |
| نجرو | اقبال سلمان | ۳/- |

## شعری مجموعے

| کتاب | مصنف | قیمت |
|---|---|---|
| چکیدہ | عین سلام | ۷/۵۰ |
| دستک بند کواڑوں پر | اعتبار ساجد | ۱۰/- |
| خار گل | ڈاکٹر عبدالحمید | ۵/- |

## تاریخ مذہب

| کتاب | مصنف | قیمت |
|---|---|---|
| تاریخ بلوچستان | گل خان نصیر | ۱۰۰/- |
| تاریخ مذاہب | رشید احمد | ۵۰/- |
| اسلام اور ہم (علامہ اقبال کی نظر میں) | فضل الرحمٰن | |

## بچوں کی کتابیں

| کتاب | مصنف | قیمت |
|---|---|---|
| کائیں کائیں میاؤں میاؤں | قمر علی عباسی | |
| ساتھی | عذرا مرزا | ۵/۵۰ |
| مٹی کی اشرفیاں | اعتبار ساجد | ۱/۵۰ |

**قلات پبلشرز**
رستم جی لین
جناح روڈ
کوئٹہ